**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو
د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# تفسیر شریف

## دولسم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۶ هـ . ش

تفسیر شریف - دولسم ټولګی



moe.curriculum@gmail.com



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم

**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د

ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي

کتابونو د تالیف لوی ریاست

# تفسیر شریف

## دولسم ټولگی

**د چاپ کال: ۱۳۹۶ هـ. ش.**

**ليکوالان**

– دکتور فضل الهادی وزین

– فضل الله نیازی

**علمي او مسلکي ایډیټ**

– محمد عارف لودین

– محمدآصف کوچي

**د ژبې ایډیټ**

– محمد قاسم هیله من

**دیني، سیاسي او کلتوري کمیټه**

– مولوی قیام الدین کشاف

– دکتور عبدالصبور فخري

**د څارنې کمیټه**

– دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین

– دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رئیس

– دکتور محمد یوسف نیازی د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست سرپرست

**طرح او ډیزاین**

عنایت الله غفاري

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

د لوی خدای ﷻ ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پرګاڼه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پرګران پیغمبر حضرت محمد مصطفی ﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي.

د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوې موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برۍ د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدای ﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

# سرلیکونه

لومړی لوست

# قرآن کریم د رڼا په لور هدایت

**قال الله تعالی:** ﴿الر ۚ كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ إِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِ رَبِّهِمْ إِلَىٰ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ۞ اللَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَوَيْلٌ لِلْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ۞﴾ [ابراهیم:۱-۲]

**د کلمو معنا**

**الر:** الف، لام، را- په دې آیت کې د مقطعه تورو له جملې څخه دي چې په معنا او تفسیر یې پرته له الله تعالی او د هغه له پیغمبرﷺ څخه بل هیڅوک نه پو هیږي.

| | |
|---|---|
| **كِتَابٌ:** | قرآن. |
| **لِتُخْرِجَ:** | چې وباسې ته. |
| **الظُّلُمَاتِ:** | د ظلمه جمع ده، تیارې. |
| **النُّورِ:** | رڼا. |
| **الْعَزِيزِ:** | غالب، د الله له مبارکو نومونو څخه یو نوم دی. |
| **الْحَمِيدِ:** | ستایل شوی،د الله له مبارکو نومونو څخه یو نوم دی. |
| **وَيْلٌ:** | هلاکت، افسوس، د دوزخ په ښخ کې یوه کنده ده. |

**ژباړه**

(ا ـ ل ـ ر) ای پیغمبره! دا یو کتاب دی چې موږ ستا لوري ته نازل کړی دی چې ته یې خلک د هغوی د رب په مرسته له تیارو څخه د رڼا په لور چې د برلاسي او ستایل شوي رب لیار ده راوباسي.

الله هغه ذات دی چې د آسمانونو او ځمکې د ټولو هستیو څښتن دی. او سخت عذاب او هلاکت د کافرانو په برخه دی.

**تفسیر**

**د آیتونو شرح او څیړنه**

د دې لوست مبارک آیتونه د (ابراهیم) سورت لومړني آیتونه دي چې مدینې منورې ته له هجرت د مخه په مکه معظمه کې نازل شوي دي. د دې سورت لومړنی آیت په (الر)

يعنې درې تورو (الف، لام، را) پېل شوی دی. دا ډول توري په قرآن عظیم الشان کې د مقطعه، یعنې له یو بل نه بیل او جلا تورو په نامه یادیږي. د قرآن عظیم الشان نهه ویشت سورتونه په دغو تورو پیل شوي دي.

مفسرین د دغو تورو د معنا په هکله بیل، بیل او متفاوت نظرونه لري،[1] خو د دغو تورو حقیقي معنا او په دغو تورو د قرآن عظیم الشان د ځینو سورتونو د پیلېدو اسرار یوازې الله تعالی او د هغه رسول علیه السلام ته معلوم دي او موږ نشو کولای په یقین سره د دې تورو د معنا او مفهوم په اړه څه ووایو.

په مبارك آیت کې له کتاب څخه مراد قرآن مجید دی. (کتاب) د قرآن عظیم الشان له نومونو څخه دی چې په ګڼ شمیرآیتونو کې په دې معنا یاد شوی دی. په نکره صیغې سره د (کتاب) لفظ کارول د دې مبارک کتاب په اوچت مقام او لوړې مرتبې دلالت کوي.

د کتاب د نازلېدو معنا دا ده چې قرآن عظیم الشان د الله له لوري د جبرایل ﷺ په واسطه د دنیا د اسمان له (بیت العزة) نه په پېغمبرﷺ باندې نازل شو.

له تیارو نه د رڼا په لور د خلکو را ایستل د پېغمبرﷺ د رسالت او بعثت ستر هدف دی . د تیارې لفظ له کفر، جهل، شرک، بدعت او نورو ټولو اعتقادي او عملي مفاسدو او انحرافاتو څخه استعاره ده. د **(ناس):** کلمه په عربي ژبه کې د خلکو په معنا ده. د (ال) راتلل د دغې کلمې په سر کې د انسان په مطلق جنس دلالت کوي، د هرې زمانې او هر ځای انسانانو ته شاملیږي چې د خدایﷻ د وروستني پېغمبر په حېث د رسول اللهﷺ په عالمیت، او د هغه مبارک د رسالت په تل پاتې کېدو او د وروستني کتاب په حیث د قرآن عظیم الشان په عالمیت، عمومیت او همېشه والي دلالت کوي.

**د (نور)** کلمه له ایمان، توحید، اسلام، د پېغمبرﷺ له سنتو او ټولو اعتقادي او عملي فضایلو او ښېګڼو څخه استعاره ده. دلته د تیارو او ظلمونو لپاره د جمعې لفظ (الظلمات) تیارې، او د رڼا لپاره مفرد لفظ (النور) کارول شوی دی؛ ځکه کفر ډېر انواع او طریقې لري، خو د ایمان لاره یعنې د الله تعالی او اسلام لاره یوه ده.

---

[1] د امام بیضاوي انوار التنزیل تفسیر

د ﴿بِإِذْنِ رَبِّهِمْ﴾ عبارت په دې دلالت کوي چې له تیارو، شرك او اعتقادي او عملي مفاسدو څخه د خلکو را ایستل د قرآن او د پېغمبرﷺ د لارښوونو په وسیله، د الله تعالی په امر او ارادې سره ترسره کیږي. لکه څرنګه چې د ﴿إِلَى صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ﴾ له مبارکې جملې څخه څرګندیږي. د الله ﷻ له لارې نه مقصد د الله تعالی دین، شریعت او الهي سنن دي. د آیت پای په دوو صفتونو(العزیز) یعنې غالب، او(الحمید) یعنې د ټولو مخلوقاتو په ژبه ستایل شوي، سره شوې ده، چې په دې کې د کفارو لپاره یو ډول ډار (انذار) او یادونه (تذکیر) ده ترڅو کفار پرکفر او عملي مفاسدو باندې له اصرار څخه لاس واخلي.

د لوست د دویم آیت لومړنی برخه پر ټوله هستی او کایناتو یعنې اسمانونو او ځمکې باندې د الله تعالی د مالکیت او مطلق قدرت څرګندونه کوي. د آیت په دویمه برخه کې د کافرانو لپاره تهدید او سخت وعید دی، چې پر کفر باندې د استمرار په حالت کې به سخت عذاب د دوی په انتظار کې وي. د نکرې صیغې کارول د (ویل)، (عذاب) او (شدید) په کلماتو کې د عربي ژبې د اسلوب او دستور له نظره د عذاب په شدت او سختۍ دلالت کوي چې د کفارو لپاره تیار شوی دی.

**دآیتونو لنډ مفهوم**

د پورتنیو مبارکو آیتونو اجمالي مفهوم دا دی چې الله تعالی په دغو دوو مبارکو آیتونوکې د قرآن عظمت ته په اشارې سره په روان او څرګند اسلوب سره د قرآن کریم د نازلېدو او د پېغمبر ﷺ د بعثت موخه، د کفرله تیارو نه د خلکو را ایستل او له اعتقادي انحرافاتو او عملي مفاسدو نه د ایمان او اسلام د رڼا په لور راتلل ښودلي دي او پر هستۍ اوکایناتو باندې د عزیز او حمید ذات بشپړې غلبې ته په اشارې سره یې کافران پرکفر د اصرار اوسرغړونې له خطرناکو پایلو څخه ویرولي دي.

**د قرآنکریم ځانګړتیاوې**

**۱ - قرآن د هدایت او لارښوونې کتاب**

څرنګه چې په پورتنیو آیتونو کې یادونه وشوه چې الله تعالی قرآن نازل کړ، ترڅو پیغمبر ﷺ خلك له تورو تیارو نه راوباسي او د رڼا په لور ورته لارښوونه وکړي. دا د دې څرګندونه کوي چې قرآن د هدایت او لارښوونې کتاب دی. په قرآن عظیم الشان

کې داسې ډېر آيتونه شته چې په هغو کې قرآن ته هدايت ويل شوی دی. نوموړي آيتونه د پورتني آيت شرح او تفسيرکوي؛ ځکه چې د قرآن ښه او غوره تفسيرونکی پخپله قرآن دی. مثلاً: په لاندينيو مبارکو آيتونو کې غور او دقت وکړئ:
﴿ذَلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِلْمُتَّقِينَ﴾ [البقرة:٢] **ژباړه:** دا د الله کتاب دی، هيڅ شك پکې نشته، پرهيزګارانو ته لارښوونکی دی. ﴿هَذَا بَيَانٌ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَمَوْعِظَةٌ لِلْمُتَّقِينَ﴾ [آل عمران:١٣٨] **ژباړه:**دا قرآن د عامو خلکو لپاره بيان او د پرهيزګارانو لپاره هدايت او پند دی. ﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَى لِلْمُسْلِمِينَ﴾ [النحل:٨٩]
**ژباړه:** او موږ داسې کتاب پرتا نازل کړی دی چې هر څه يې پوره بيان کړي او د مسلمانانو لپاره هدايت، رحمت او د خوښۍ زيری دی.
د پام وړ ده چې د هدايت لفظ په قرآن کريم کې کله د ارشاد او لارښوونې په معنا او کله هم د توفيق په معنا کارول کيږي.

**٢ - قرآن نړيوال او تلپاتې کتاب**

قرآن کريم کې د (هدايت) د کلمې معنا کارولو ته په پام او په مختلفو مواضعوکې د قرآن مجيد د آيتونو سياق او مفهوم ته په کتلو سره، پرته له شکه دا څرګنديږي چې قرآن کريم د هغو کسانو لپاره د هدايت او لارښوونې کتاب دی چې ايمان يې پرې راوړی دی او د هغه د تعليماتو او ژغورونکو قوانينو له خوږې سرچينې څخه يې ګټه پورته کړې ده، خو په دې کې هم شك نشته چې د قرآن دعوت او خطاب عام او نړيوال دی؛ ټول بشريت ته په هرځای او هروخت کې متوجه دی او په يوې ځانګړې ډلې او يا خاصو خلکو پورې اړه نه لري.
د مثال په توګه: په لاندينيو آيتونو کې قرآن کريم د ټولو خلکو لپاره هدايت بلل شوی دی:
الف: ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ هُدًى لِلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِنَ الْهُدَى وَالْفُرْقَانِ﴾ [البقرة: ١٨٥].
**ژباړه:** روژه هغه مياشت ده چې په دې کې هغه قرآن نازل شوی دی چې د خلکو لپاره له سره تر پايه هدايت دی او داسې څرګندې لارښوونې په کې دي چې د سمې لارې ښوونکې او د حق او باطل يوله بله په ډاګه بيلوونکې دي.

ب: ﴿تَبَارَكَ الَّذِي نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلَى عَبْدِهِ لِيَكُونَ لِلْعَالَمِينَ نَذِيرًا﴾ [الفرقان:۱] **ژباړه:** ډېر لوړ او برکتناک دی هغه ذات چې پرېکړه کوونکی قرآن يې پر خپل بنده (محمد) نازل کړی تر څو د ټولو خلکو لپاره ډاروونکی وي.

ج: ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِلْعَالَمِينَ﴾[ص:۸۷] **ژباړه:** قرآن پرته له دې، چې د ټول عالم لپاره پند وي، بل څه نه دی.

د قرآن عظيم الشان د عالميت بل دليل د خاتم الانبيا حضرت محمدﷺ نړيوال او تلپاتې رسالت دی چې دا کتاب پرې نازل شوی دی، ځکه نبوت اوقرآن دوه نه بيليدونکي شيان دي او يو له بل څخه نه جدا کيږي. الله تعالی فرمايي:﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ﴾ [الأنبيا: ۱۰۷]. **ژباړه:** موږ ته نه يې راليږلی، مگر رحمت د ټولو عالميانو لپاره.

د قرآن عظيم الشان آيتونه پردې ناطق او گواه دي چې قرآن يو نړيوال، عالمي او تلپاتې کتاب دی. دا کتاب په خپلو تعليماتو، احکامو او ارزښتونوسره د تل لپاره نوی دی، هيڅکله هم نه زړيږي او په هر وخت او زمان کې د بشر د هدايت او لارښوونې لپاره واضح او څرگند پيغام لري.

**فعاليت**

زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د قرآن کريم د نړيوالتوب، عالميت او هميشه والي په هکله په خپلوکې سره مباحثه وکړي.

### ۳ - قرآن کريم له لاس وهنې (تحريف او تبديل) نه ساتل شوی کتاب

د بشر د هدايت لپاره د الله تعالی د وروستني کتاب په حېث د قرآن د عالميت او هميشه والي غوښتنه دا ده چې دا کتاب له تحريف او لاس وهنو څخه پاک وي؛ ځکه که چېرې په قرآن کې هم د پخوانيو کتابونو، لکه د تورات او انجيل په څير تحريف او بدلون راغلی وای، نو په دې صورت کې قرآن نه شوای کولی د هرځای او هرې زمانې د خلکو لپاره د هدايت کتاب وای. له دې امله الله تعالی په ډېر ټينگار سره د قرآنکريم د ساتنې په اړه داسې فرمايي:﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ [الحجر:۹] **ژباړه:** بېشکه چې موږ ذِکر (قرآن) راليږلی دی او موږ يې خامخا ساتونکي يو.

د الله تعالی د دغې ژمنې تحقق موندل او ترسره کېدل د قرآن عظیم الشان له معجزو څخه یوه څرګنده معجزه ده. قرآن کریم د مسلمانانو په اجماع او د مخالفینو په ګواهۍ سره د تورات او انجیل پر خلاف، چې د یوې ځانګړې زمانې او خلکو لپاره نازل شوي وو، له تحریف او تبدیل څخه محفوظ او مصئون پاتې دی، په دې معنا چې د قرآن په نصوصو یعنې آیتونو، سورتونو او الفاظو کې په لږه اندازه کمی، زیاتی او یا تغیر او تبدیل هم نه دی رامنځته شوی. کوم قرآن چې دا مهال زموږ سره دی، په بشپړه توګه هماغه الهي وحي ده چې جبرئیل عليه السلام د الله له لوري پر محمد ﷺ باندې نازله کړې ده. بیا قرآن کریم د رسول علیه السلام په واسطه په لیکلې بڼه په صحیفو او د اصحابوکرامو په سینو کې وساتل شو. وروسته بیا دغه قرآن پرته له دې چې یوه کلمه او یا توری له هغه نه کم او یا پرې ورزیات شي، له یوه نسل نه بل نسل ته په نقلیدو ترموږ راورسید. دا لړۍ به تر قیامته پورې دوام ولري او قرآن به د الهي ژمنې پر اساس له لاس وهنې څخه خوندي پاتې وي. قرآن د انسانانو د هدایت او لارښوونې لپاره د الله تعالی وروستنی کتاب دی چې هیڅ ډول نسخ، تحریف او تبدیل هغه ته لاره نشي موندلی. د قرآن کریم له نزول وروسته د وحي لړۍ بنده شوې ده. د الله تعالی له لوري بل کتاب نه راځي. همدارنګه بل پیغمبرهم نه رالیږل کیږي. لکه څرنګه چې دا مطلب په لاندینې آیت کې په څرګند ډول بیان شوی دی، الله تعالی فرمايي: ﴿لَا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ تَنْزِيلٌ مِنْ حَكِيمٍ حَمِيدٍ﴾ [فصلت:٤٢] **ژباړه:** نه ورته د مخ له لورې باطل راتلای شي او نه د شا له لورې، دا د حکیم او ستایلي شوي ذات رالیږل شوی کتاب دی.

دويم  لوست
د تېر لوست پاتې برخه

# قرآن کريم د رڼا په لور هدايت

**۴ -  قرآن کريم شامل او کامل کتاب دی**

څرنګه چې قرآن د بشر د هدايت لپاره په هرعصر او زمان کې تلپاتې کتاب دی، نو په کار ده چې دغه کتاب شامل او کامل کتاب وي او د ژوند ټولو برخو ته شامل وي. له دې امله د قرآن سپيڅلي تعليمات، احکام او ارزښتونه داسې هراړخيز دي چې د ژوند ټولې خواوې رانغاړي.

قرآن عظيم الشان د قضاياو په مطرحولو او څېړلو کې داسې بليغ او څرګند اسلوب لري چې په هر وخت اوځای کې د تطبيق قابليت او وړتيا لري. د مثال په ډول لاندينی آيت تر غور لاندې نيسو. الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَقَدْ جِئْنَاهُمْ بِكِتَابٍ فَصَّلْنَاهُ عَلَى عِلْمٍ هُدًى وَرَحْمَةً لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ [الأعراف:٥٢] **ژباړه:** موږ هغوی ته د علم په رڼا کې پوره او بشپړ کتاب راوړی و چې د ايمان راوړونکي قوم لپاره هدايت او رحمت و. همدارنګه فرمايي: ﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَى لِلْمُسْلِمِينَ﴾ [النحل: ٨٩] **ژباړه:** او موږ پر تا داسې کتاب ( قرآن) نازل کړی دی چې هر څه يې پوره بيان کړي دي او د مسلمانانو لپاره هدايت، رحمت او د خوښۍ زيری دی.

**۵ -  قرآنکريم او پخواني آسماني کتابونه**

قرآن کريم د بشريت د لارښوونې لپاره د الله تعالی وروستنی او تر ټولو بشپړ کتاب دی. د قرآن کريم په نزول سره ټول پخواني اسماني کتابونه منسوخ شوي دي، ځکه قرآن د بشر د لارښوونې لپاره د الله تعالی د وروستني کتاب په حيث د پخوانيو کتابونو ټول هغه احکام چې د بقا وړتيا يې درلودله په خپل ځان کې لري او د دغو کتابونو تصديق کوونکی دی. الله تعالی فرمايي: ﴿نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَأَنْزَلَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ﴾ [آل عمران: ٣] **ژباړه:** (الله تعالی) په حقه پر تا هغه کتاب (قرآن) نازل کړی چې پخواني آسماني کتابونه رښتيني ګڼي او هم يې تورات او انجيل نازل کړی دی.

له دې امله پر ټول بشريت فرض دي چې پر قرآن اوخاتم النبيين حضرت محمدﷺ باندې ايمان راوړي. رسول اللهﷺ په دې اړه داسې فرمايلي دي: «وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَا يَسْمَعُ بِي أَحَدٌ مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ يَهُودِيٌّ أَوْ نَصْرَانِيٌّ ثُمَّ يَمُوتُ وَلَا يُؤْمِنُ بِالَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَّا كَانَ مِنْ

أَصْحَابِ النَّارِ» [1] **ژباړه:** قسم په هغه ذات چې د محمد نفس د هغه په لاس کې دی هرڅوک له دې امت څخه که هغه یهودي وي یا نصراني او زما له بعثت څخه خبر شي، بیا په داسې حال وفات شي چې ایمان رانه وړي پر هغه څه چې زه پرې رالیږلی شوی یم، مګر دا چې هغه به د دوزخیانو له جملې څخه وي.

څرنګه چې په پخوانیو کتابونو کې ډېر زیات تحریف او بدلون راغلی دی او نسخې یې یو تر بله ډېر توپیر لري نو موږ نشو کولای چې پر دغو نسخو د الهي کتاب په حیث اعتماد وکړو. الله تعالی فرمایلي دي: ﴿فَوَيْلٌ لِلَّذِينَ يَكْتُبُونَ الْكِتَابَ بِأَيْدِيهِمْ ثُمَّ يَقُولُونَ هَذَا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ لِيَشْتَرُوا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا...﴾ [البقرة: ٧٩] **ژباړه:** هغه خلک دې هلاک وي چې یوشی په خپل لاس ولیکي او بیا وایي دا د الله ﷻ رالیږلې لیکنه ده، ترڅو ډېرې لږې پیسې پرې ترلاسه کړي.

قرآن د تورات او انجیل د هغو کتابونو (کوم چې اوس مهال اهل کتاب ورته لاس رسي لري) د محتویاتو د حقیقت او بطلان تشخیصوونکی او څیړونکی دی. له دې امله قرآن عظیم الشان ته د نورو اسماني کتابونو ساتونکی(مهیمن) او ناظر ویل شوی دی. الله تعالی فرمايي:﴿وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ..﴾ [المائده: ٤٨] **ژباړه:** ای محمده، موږ تا ته دا کتاب (قرآن) په حقه درلیږلی دی چې له ده وړاندې کتابونه ریښتیني ګڼي او ساتونکی یې دی.

**- د قرآن په وړاندې د مسلمان مسؤولیت**

پر قرآن باندې د ایمان لرلو او د الله تعالی د وروستني کتاب په حېث د هغه د تعظیم او درناوي برسیره، مسلمان د قرآن په وړاندې نور وجایب او مکلفیتونه هم لري چې د قرآن د نصوصو په رڼا کې به له دغو مسؤلیتونو نه ځینې په لنډ ډول بیان کړو:

١- پر قرآن باندې د پوهېدو او ګټو ترلاسه کولو په منظور په ډېر دقت سره د قرآن کریم د آیتونو استماع او اوریدل. الله تعالی فرمايي: ﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ [الأعراف:٢٠٤] **ژباړه:** او کله چې ستاسې په وړاندې قرآن لوستل کیږي نو هغه په غور سره واورئ او چپ اوسئ، بنايي چې پر تاسې رحم وشي.

---

١ - رواه مسلم

۲- د قرآن له آیتونو څخه پند او ګټه اخیستل او د هغو په احکامو او حکمتونو ځان پوهول. الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ﴾ [القمر: ۱۷] **ژباړه:** او په یقین سره موږ قرآن د پند اخیستلو لپاره اسان کړی، آیا شته کوم پند اخیستونکی؟.

۳- د قرآن په آیتونو کې تفکر او تدبر او د هغه په احکامو، اوامرو، نواهیو او ارزښتونو پوهیدل. الله تعالی فرمايي:﴿كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ إِلَيْكَ مُبَارَكٌ لِيَدَّبَّرُوا آيَاتِهِ وَلِيَتَذَكَّرَ أُولُو الْأَلْبَابِ﴾ [ص:۲۹] **ژباړه:** دا یو برکتناک کتاب دی چې موږ پرتا نازل کړی تر څو یې هغوی په آیتونو کې فکر وکړي او د عقل څښتنان ترې پند واخلي.

۴- د قرآن تلاوت، یعنې په سمه توګه د قرآن تلاوت او لوستل، په تلفظ او معنا کې له غلطۍ او خطا نه د مخنیوي په خاطر د تجوید د قواعدو او احکامو د مراعاتولو پر اساس د تورو ادا کول. د قرآن تلاوت په سمه توګه پرهر نارینه او ښځینه مسلمان لازم دي، الله تعالی فرمايي:﴿وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا﴾ [المزمل: ٤] **ژباړه:** او قرآن په ترتیل او تجوید سره ولوله.

۵- د قرآن کریم تبلیغ او نورو ته د هغه د احکامو، تعلیماتو، ارزښتونو او پيغام رسول. دا خبره د پام وړ ده چې د قرآن تبلیغول او په مختلفو سطحو کې د هغه د مفاهیمو، علومو او ارزښتونو خپرول د ټولو مسلمانانو (که هغه نارینه وي یا ښځینه، ټولنه وي او یا حکومت) دنده او مکلفیت دی. الله تعالی فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ﴾ [المائدة: ٦٧] **ژباړه:** ای رسوله، هغه څه خلکو ته ورسوه چې ستا د رب له لورې پر تا نازل شوي دي.

۶- د قرآن د احکامو او تعلیماتو پلي کول، د الله تعالی د کتاب په وړاندې د مسلمان په فردي او ټولنيز ژوند کې ترټولو مهم مسؤولیت او مکلفیت د قرآن کریم د اوامرو د تطبیق اوپلي کولو لپاره مخلصانه هڅه او هاند دی، ځکه قرآن کریم د تطبیق او عملي کولو په خاطر نازل شوی دی. الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ وَلَا تَكُنْ لِلْخَائِنِينَ خَصِيمًا﴾ [النساء: ۱۰۵] **ژباړه:** موږ تا (محمدﷺ) ته قرآن په حقه نازل کړی دی تر څو د الله ﷻ د لارښوونو په رڼا کې د خلکو ترمنځ پریکړې وکړې او هېڅکله د خاینانو لپاره جګړه کوونکی مه کیږه.

الله تعالی دې ټولو مسلمانانو ته د قرآن کریم د سم تلاوت، ژورې پوهې، په احکامو او تعلیماتو د عمل کولو او د قرآن تر سیورې لاندې د نیکمرغه ژوند کولوتوفیق ورکړي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

۱- قرآن په هر وخت او هر ځای کې د ټول بشریت هادي او لارښود دی.

۲- قرآن یو نړیوال کتاب دی او د کومو ځانګړو خلکو او یا ځانګړې ډلې لپاره نه دی رالیږل شوی.

۳- قرآن کریم له تغیر او تبدیل نه محفوظ او مصئون دی او هیڅوک نشي کولی په هغه کې تحریف او بدلون راولي.

۴ـ د قرآن کریم خدمت، د هغه حفظ کول، په هغه پوهیدل، د هغه تبلیغ او تطبیق د ټولو مسلمانانو دنده او رسالت دی.

۵ـ د قرآن کریم د نزول او د نبي کریمﷺ د بعثت مقصد د کفر له تیارو، شرک، جهل او له اعتقادي او عملي مفاسدو څخه د خلکو را ایستل دي.

### پوښتنې

۱- مقطعه تورې یعنې څه؟ د تفسیر علماء د دې تورو د معنا په اړه څه نظر لري؟

۲- ولې په دغه مبارک آیت کې د تیارې لپاره د جمعې صیغه او د رڼا لپاره د مفرد صیغه کارول شوې ده؟

۳ـ په دې مبارک آیت کې د الله ﷻ له لارې نه مقصد څه شی دی؟

۴ـ د دې مبارک آیت کومه برخه د قرآن کریم په نړیوالتوب او همیشه والي باندې دلالت کوي؟

۵ـ د دې مبارکو آیتونو لنډ او اجمالي تفسیر بیان کړئ.

۶ـ په دې لوست کې په قرآن سره د قرآن د تفسیر دوه نمونې بیان کړئ.

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د قرآن په وړاندې د مسلمانانو د مسئوولیت په هکله یوه مقاله ولیکي. بیا دې په ټولګي کې د ښوونکي په مرسته او لارښوونه د دې موضوع په اړه خبرې وکړي.

# د شورا ارزښت

قال الله تعالی: ﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ﴾ [آل عمران: ١٥٩]

**د کلمو معنا**

| | |
|---|---|
| {لِنْتَ}: | نرم شوې. |
| {فَظًّا}: | بد خويه. |
| {غَلِيظَ الْقَلْبِ}: | د سخت زړه خاوند. |
| {لَانْفَضُّوا}: | هرو مرو به خواره شوي وو. |
| {شَاوِرْهُمْ}: | مشوره وکړه له هغوی سره. |
| {عَزَمْتَ}: | هوډ(قصد) دې وکړ. |
| {فَتَوَكَّلْ}: | نو توکل وکړه. |
| {يُحِبُّ}: | خوښوي. |

**ژباړه**

نو د الله ﷻ د مهرباني له امله نرم شوې ته د هغوی(صحابه وو) لپاره او که وای ته بد خويه سخت زړی، هرو مرو به دوی ستا له شاوخوا نه خپاره شوي وو. نو هغوی ته عفوه وکړه او د هغوی لپاره ببښنه وغواړه او په کار کې له هغوی سره مشوره وکړه او کله چې هوډ وکړ تا، نو توکل وکړه په الله ﷻ بې شکه الله ﷻ خوښوي توکل کوونکي.

**تفسير**

**د آيت شرح او څېړنه**

پورتنی مبارک آيت د (آل عمران) د سورت له آيتونو څخه دی. د (آل عمران) سورت په مدينه منوره کې نازل شوی دی. دغه سورت د نورو مدني سورتونو په څېر د اسلامي

ټولنې د چارو د تنظیم لپاره په ډېرو احکامو او تعلیماتو مشتمل دی. یو له دغو احکامو څخه چې په دې سورت کې بیان شوی دی، د (شورا) حکم دی.

دغه مبارك آیت دهغو آیتونو په لړ کې نازل شوی دی چې د احد په غزوې پورې (چې د هجرت په دریم کال پیښه شوه) تړاو لري. په دې آیت کې پیغمبرﷺ ته خطاب شوی دی؛ خو د اطاعت او پیروۍ د اصل پر بنسټ د پیغمبرﷺ امت په هغه سره د خطاب وړ ګرځېدلي دي او د دی مبارك آیت د احکامو د مقتضا په عملي کولو مکلف دي.

د (ب) توری د{فَبِمَا} په کلمه کې د سبب د بیان، یعنې د پیغمبرﷺ د اصحابو او یارانو په وړاندې د هغه د نرمۍ د سبب د بیان لپاره، چې د الله ﷻ له رحمت او مهربانۍ څخه عبارت دی، راغلی دی.

د [ما] توری دلته د الله تعالی د رحمت او مهربانۍ د تأکید افاده کوي.

غلظت د رقت او نرمۍ ضد دی او د زړه غلظت د سختۍ او نه متأثره کیدلو په معنی دی.

د آیت لومړنۍ برخه یعنې د ﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ﴾ جملې د رسول اللهﷺ په یارانو د هغهﷺ د نرمۍ سبب د الله تعالی رحمت او مهرباني بیان کړې ده او د سخت خویه او سخت زړي صفتونه یې له هغه څخه نفې کړې دي.

د (عزم) کلمه د هوډ او ارادې په معنا ده. الله ﷻ خپل ګران پیغمبرﷺ ته امر کوي وروسته له دې چې دې له خپلو یارانو سره د یو کار په تر سره کولو کې مشوره وکړه او بیا دې تصمیم ونیو، نو پرته له کوم شك او تردد څخه پر الله ﷻ توکل او اعتماد وکړه او کار دې ترسره کړه.

**د آیت لنډ مفهوم**

د آیت لومړنۍ برخه چې د احد د غزا د آیتونو د سیاق په لړ کې نازل شوې ده په دې کې الله تعالی خپل پیغمبرﷺ د هغهﷺ له یارانو سره په نرمۍ او شفقت کولو ستایلی دی او له هغه نه د ناوړو صفاتو، بدو خویونو او سخت زړه والي نفې کوي؛ ځکه که چېرې په هغه کې ناوړه صفاتو شتون درلودای، نو دا به له پیغمبرﷺ نه د خلکو د کرکې او لریوالي لامل شوی وی، له شك پرته دا کار د رسالت د سترې موخې، چې خلکوته د ربښتیني بلنې رسول او په ښې طریقې سره د دغې بلنې د قبلولو لپاره د خلکو هڅول دي، مطابقت نه لري.

د آیت په دویمه برخه کې الله تعالی خپل پیغمبرﷺ ته امر کوي چې د خپلو یارانو له تېروتنو څخه تېر شي. دغه تېروتنې د احد د غزا پر مهال رامنځته شوې چې په پایله کې يې مسلمانان ډېر زيات زيانمن شول او ګټلې جګړه يې ظاهراً له لاسه ورکړ. همدارنګه الله ﷻ خپل پیغمبرﷺ ته امر کوي د خپلو يارانو تېروتنې او خطاګانې، چې د احد په غزا کې له هغوی نه شوي دي، وبښي.

په دې آيت کې پيغمبرﷺ ته د الله تعالی له لوري دريم امر مشوره کول دي. الله تعالی خپل پیغمبرﷺ ته امر کوي چې د کارونو په ترسره کولو کې له خپلو اصحابو سره مشوره وکړي او د هغوی نظر واوري. دا حکم يعنې په شورا امر کول د اسلامي ټولنې، حکومت او چارواکی د نظام بنسټ جوړوي.

د آیت په پای کې الله تعالی خپل پیغمبرﷺ ته خطاب کوي اوداسې فرمايي، وروسته له دې چې د کارونو په ترسره کولو کې دې مشوره وکړه، نو په الله ﷻ توکل او اعتماد وکړه او پرته له تردد څخه کار ترسره کړه، ځکه الله ﷻ هغه کسان خوښوي چې پر الله تعالی توکل کوي.

**د حکیم او پوه لارښود ځينې صفات**

په دغه مبارك آيت کې د پيغمبرﷺ اووه صفتونه بيان شوي دي، درې صفتونه يې د وصف او اخبار صبغه لري او څلور نور صفتونه يې د امر په صيغې راغلي. دغه صفتونه په لاندې ډول دي:

- له نورو سره په شفقت او نرمۍ کړنه اوتعامل.
- له خلکو سره له بد خويي او بد چلن څخه ځان ساتل.
- له پيغمبرﷺ نه د سخت زړه توب د او صافو نفې کول.
- عفوه او بښنه.
- د عفوې او بښنې غوښتل.
- په چارو کې مشوره کول.
- د چارو په ترسره کولو کې پر الله تعالی توکل او اعتماد لرل.

د قرآن کريم د پورتني آيت د احکامو پر بنسټ مسلمانان د الله تعالی د رسول په پيروۍ مکلف دي. الله تعالی فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ..﴾ [الأنفال:٢٠].

**ژباړه**: ای مؤمنانو، د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ متابعت او فرمانبرداري وکړئ. ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا﴾ [الأحزاب:٢١]. **ژباړه**: په يقين سره چې د الله رسول ستاسې د هغو خلکو لپاره ښه او غوره نمونه ده، چې د الله او آخرت د ورځې هيله لري او الله ډېر يادوي.

پېغمبرﷺ د مسلمانانو لپاره يوه ښه اوغوره نمونه ده او هغوی مکلف دي په خپلو اخلاقو، صفاتو او کړنو کې د پېغمبرﷺ پېروي وکړي. سره د دې چې په آيت کې د ذکر شويو صفاتو خپلول پرهر مسلمان لازم دي، خو پر دغو صفاتو باندې د هغو کسانو سمباليدل ډير مهم او اړين دي چې د قيادت او لارښوونې په مناصبو کې ځای لري.

د آيت له الفاظو نه څرګنديږي، که چېرې قائد او لارښود، نرم خويه او مهربانه وي او له بدو او ناوړو اخلاقو څخه، چې د خلکو دکرکې لامل ګرځي، ځان وژغوري، نو يقيناً د خلکو زړونه خپلوي، رعيت يې د اوامرو اطاعت کوي او چارې يې په سمه توګه پرمخ ځي. همدارنګه د ملګرو، دوستانو او د ولس له تېروتنو څخه تيريدل، هغوی ته عفوه کول، هغوی ته د برکت، ښښنې او مغفرت دعا کول او د چارو په ترسره کولو کې د هغوی د نظرياتو او مشورو اخيستل د چارو په سمون کې ډيره زياته اغيزه لري.

څلورم لوست

د تېر لوست پاتې برخه

# د شورا ارزښت

**شورا يو قرآني بنسټ (اصل) دی**

شورا د اسلام په دين کې يو ثابت اصل دی. مسلمانان مکلف دي د الله تعالی د امر د تعميل او له پيغمبر ﷺ څخه د پیروۍ په خاطر دغه مهم اصل په خپل فردي او ټولنيز ژوند کې مراعات او پلی کړي.

د چارو په ترسره کولو کې مشوره کول، رايه ورکول او د نورو نظرياتو ته غوږ نيول او د هغو شريکولو ته شورا ويل کيږي. د شورا د اهميت په هکله دا بسنه کوي چې په قرآن عظيم الشان کې يو ځانګړی سورت د (الشوری) په نامه نومول شوی دی. په پورتني مبارك آيت کې الله تعالی خپل محبوب پيغمبرﷺ ته، سره له دې چې وحی هم پرې نازلېدله په شورا امر کړی دی، ترڅو د چارو په ترسره کولو کې له خپلو اصحابو سره مشوره وکړي.

ستر تابعي امام حسن بصري د دې آيت په تفسير کې داسې وايي: "د الله تعالی امر خپل پيغمبرﷺ ته په مشوره کولو د دې لپاره نه دی چې ګواکې د يارانو نظر ته يې اړتيا ليدل کيده، بلکې دا امر د دې لپاره دی تر څو مسلمانان د شورى په فضيلت او ارزښت پوه شي، د رسول عليه السلام پسې اقتدا وکړي او د چارو په ترسره کولو کې د هغه پيروي وکړي".

امام قرطبي د پورتني آيت په تفسير کې داسې وايي: "شورا د شريعت له قواعدو او ثابتو او ارزښتناکو احکامو څخه ده. که چيرې مسؤولين او د حکومت چارواکي له ديني علماوو او تجربه لرونکو کسانو سره مشوره ونه کړي، نو له دندې څخه ګوښه کول يې واجب دي".

**شورا د اسلامي ټولنې يوه ځانګړتيا ده**

په چارو کې مشوره کول نه يوازې د اسلام يو شرعي حکم دی بلکې د مسلمانانو او اسلامي ټولنې له صفاتو او ځانګړ تياوو څخه بلل کيږي.

الله تعالی د مسلمانانو د اساسي اوصافو په اړه داسې فرمايي: ﴿وَالَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ﴾ [الشورى: ۳۸]. **ژباړه:** او مؤمنان هغه کسان دي چې د خپل رب بلنه يې منلې ده او لمونځ يې اداء کړی (قايم کړی) دی او خپل منځي کارونه يې په مشورې سره دي او له هغه څه نه چې موږ دوی ته ور روزي کړې د الله په لار کې يې مصرفوي.

له دې مبارك آيت نه دا څرګندیږي چې شورا نه يوازې د اسلام د سياسي نظام يو اصل دی، بلکې د هغې ريښې د مسلمانانو په ژوندانه کې ډيرې زياتې ژورې دي. د قرآن کريم له نظره شورا د اسلامي ټولنې له ارزښتناکو مشخصاتو څخه ګڼل کيږي چې په پراخه توګه په مختلفو برخو کې د هغې پلي کول د اسلامي امت فردي او ټولنيز ژوند جوړوي.

رسول الله ﷺ به د چارو په ترسره کولو کې د تجربې او راپې له خاوندانو سره مشوره کوله او شورا ته په ډير لوی ارزښت قايل وو. د شورا د فضيلت او ارزښت په هکله له رسول الله ﷺ نه ډير زيات احاديث روايت شوي دي. د مثال په ډول په يو حديث کې له رسول الله ﷺ نه روايت شوی دی، چې فرمايي : «ما خاب من استخار ولاندم من استشار»[1]

**ژباړه:** څوك چې د كارونو په ترسره كولو كې مشوره وكړي هغه به هيڅكله پښيمانه نشي او څوك چې استخاره وكړي هغه به هيڅكله زيانمن او نا اميده نشي. په بل حديث کې رسول الله فرمايلي دي: «ما شقی قط عبد بمشورة وما سعد باستغناء برأی»[2] **ژباړه:** چا چې په کارونو کې مشوره وکړه هغه به هيڅکله بدمرغه نشي او چا چې د نظر او راپې له اخيستلو نه استغنا وکړه هغه به هيڅکله هم نيکمرغه نشي.

امام بخاري رحمه الله په دې هکله، چې شورا په اسلامي ټولنه کې يو رايج او دوديز عمل دی، داسې فرمايي:" د پيغمبرﷺ له مړينې وروسته به اسلامي امت په ټولو مباحو او مشروعو امورو کې د امينو عالمانو او پوهانو سره مشوره کوله ترڅو له ټولو نه په آسان شي عمل وشي."

---

[1] – الطبرانی فی المعجم الصغير و الأسط.

[2] – مسند شهاب باب ماشقی عبد قط بمشورة

**فعالیت**

زده کوونکي دې د مضمون د ښوونکي په مرسته د ټولګې او ښوونځي د ځینو مسائلو په اړه مشوره وکړي.

## شورا د اسلامي نظام یو ارزښتناك اصل دی

پرته له شکه شورا په اسلام کې د حکومتي نظام یو ارزښتناك اصل او پیاوړی ستن (رکن) بلل کیږي. پیغمبرﷺ د اسلامي نظام او دولت د لومړني رئیس په توګه په مختلفو حالاتو لکه د بدر، احد، احزاب، حدیبیې او نورو غزواتو کې له خپلو اصحابو، یارانو او پاکو بیبیانو یعنې امهات المؤمنین سره د هغو چارو په هکله، چې په هغو کې د مسلمانانو ښېګڼې نغښتې وې، مشوره کړې ده.

د دې امت سلف صالح یعنې د امت مخکیني مشران لکه خلفای راشدین، صحابه او تابعینو د رسول اللهﷺ په طریقو عمل کړی او د مسلمانانو ارزښتناك او مهم کارونه یې په مشوره ترسره کړي دي.

پرته له شکه د شورا د کمزوری او نشتوالي په صورت کې پر ټولنې، حکومتي نظام او د خلکو پر برخلیك ظلم اواستبداد برلاسی کیږي چې په دې سره د چارواکو لپاره د طغیان او زورواکی زمینه برابریږي او ټولنه د بد مرغی، تیري او بې عدالتی کندې ته پریوزي.

د یومفسر په وینا " په کومه ټولنه کې چې د شورا دروازه وتړلې شي په هغې کې د ظلم او تیري دروازه پرانستل کیږي".

یو بل مفسر د دې آیت په تفسیر کې داسې وایي: " د شورى له اصل سره دوه ډوله چارواکي مخالفت کوي: یو هغه چارواکي چې متکبر او مغرور وي، ځان پر نورو لوړ ګڼي او ګومان کوي چې د هیچا مشورې ته اړتیا نه لري، د ده هرنظر او خبره سمه ده او د نورو نظر ناسم دی. بل هغه چارواکي چې ظالم، مستبد او د حق مخالفت کوي او څه یې چې زړه وغواړي هغه تر سره کوي، ځکه هغه پوهیږي که چیرې له چا سره مشوره وکړي نو خلك به د ده په ظلم، تیري او ناوړو چارو خبر شي."

سوکاله او نیکمرغه ژوند ته د رسیدلو لپاره که هغه د کورنی، ټولنې او یا حکومت په کچه وي د شورا د مهم او حیاتي اصل پلي کول او پر هغې پابندي کول ډیر اړین بلل

کیږي. د عدالت پلي کېدل، د خلکو د برخلیك په مسائلو کې د هغوی مشارکت او ونډه اخیستل، په کورنۍ او ټولنه کې د مرستې او وروګلوۍ د فضا رامنځته کېدل او د ظلم، تیري او اختناق له منګولو نه خلاصیدل او داسې نورې ستونزې پرته له شورا څخه نشي هواریدلی.

### د لوست ګټې او لارښوونې

- ❖ د پیغمبرﷺ اخلاقی کمال.
- ❖ دصحابه وو رضی الله تعالی عنهم فضیلت.
- ❖ د مسلمانانو په فردي، ټولنیز او سیاسي ژوند کې د یومهم اصل په توګه د شورا تثبیت.
- ❖ وروسته له مشورې او تصمیم څخه له تردد نه ځان ساتل.
- ❖ په ټولو چارو کې پر الله تعالی توکل او اعتماد لرل.

### پوښتنې

۱- ولې د قرآن کریم په مدني سورتونو کې شرعي احکام زیات دي؟
۲- که چیرې د شورا اصل په ټولنه کې شتون ونه لري، د ټولنې خلك به په کوم ډول ستونزو اخته شي؟
۳- آیا د شورا اصل یوازې په سیاسي نظام پورې تړاو لري او که د ژوندانه په نورو برخو کې هم پلې کیدای شي؟
٤- کوم ډول چارواکي د شورا له اصل سره مخالفت کوي او ولې؟
٥- د نیك اوصالح لارښود او چارواکي لپاره د ځینو اړینو صفاتو نمونه واخلئ.

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له آیت او حدیث نه په استفادې سره د شورا د ارزښت او په ټولنه کې د هغې د تطبیق کیدو په هکله یوه مقاله ولیکي چې له دوو مخونو څخه کمه نه وي.

پنځم لوست

# د انبیاوو مقام

قال الله تعالى: ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَنْ يَنْصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ﴾ [الحديد: ۲۵]

**د کلماتو معنا**

{رُسُلَنَا}: زموږ رسولان.

{بِالْبَيِّنَاتِ}: په ښکاره او څرګندو نښانو (دلایلو او معجزاتو).

{الْمِيزَانَ}: تله.

{بِالْقِسْطِ}: په انصاف او عدل.

{الْحَدِيدَ}: اوسپنه.

{بَأْسٌ}: جنګ، ډېر زور او طاقت.

{عَزِيزٌ}: برلاسی، غالب.

**ژباړه**

موږ په رښتیا خپل رسولان له روښانه او څرګندو نښو (دلایلو) سره ولیږل، له هغو سره مو کتاب او تله نازل کړل، ترڅو خلک په انصاف ولاړ وي، او راښکته کړې (پیدا کړې) ده موږ اوسپنه چې په هغې کې ډېر زور دی او جنګ پرې کېدای شي او خلکو ته پکې ډېرې ګټې پرتې دي، ترڅو معلومه کړي، الله، چې څوک د هغه له لیدلو پرته د هغه او د هغه د رسولانو مرسته او ملاتړ کوي. بې شکه الله ډېر ځواکمن او برلاسی دی.

**تفسیر**

**د آیت شرح او څېړنه**

پورتنی مبارک آیت د سورة (الحدید) له مبارکو آیتونو څخه دی چې په مدینه منوره کې نازل شوی دی. د (بینات) کلمه د (بینة) جمع ده. دلته د هغو دلایلو او نښانو په معنا ده چې د پیغمبرانو (کوم چې د الله تعالی له خوا موږ ته رالیږل شوي) په رښتینولی دلالت کوي، چې د هغو له جملې څخه د پیغمبرانو حسي معجزې هم دي.

په مبارک آیت کې له کتاب څخه موخه ټول اسماني کتابونه دي چې پر پیغمبرانوعلیهم السلام باندې نازل شوي لکه تورات، انجیل، زبور او قرآن.

**(میزان)** عبارت له تلې څخه دی چې د یو شي د تللو لپاره کارول کیږي، دلته ترې موخه د خلکو ترمنځ په احکامو او معاملاتو کې عدالت کول دي. تله له عدل او انصاف څخه استعاره ده چې د معقول تشبیه په محسوس سره شوې ده یعنې د عدل او انصاف تعبیر په تلې شوی دی. د تلې رالیږل د خلکو په منځ کې د عدالت او انصاف د تبلیغ او خپرولو په معنا دی.

د {قسط} لفظ د عدل معنا ورکوي او ټولو چارو ته شاملیږي. د اوسپنې له رالیږلو څخه مراد د هغې پیدا کول او د خلکو د ګټې لپاره د هغې چمتو کول دي.

له ﴿بَأْسٌ شَدِيدٌ﴾ څخه د اوسپنې قوت او ځواک مراد دی چې ګټه او تاوان دواړه په هغې کې نغښتي دي. د اوسپنې له منفعت څخه مراد له هغې نه د ژوند په مختلفو اړخونو لکه د سامان آلاتو د جوړولو او داسې نورو برخو کې ګټه اخیستل دي.

له ﴿وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ﴾ څخه مطلب د اثارو د څرګندیدلو له لارې د الله تعالی د علم ظاهرېدل دي چې د پیغمبرانو او اسمانی کتابونو د رالیږلو او په خلکو کې د عدالت د حاکمولو او له اوسپنې نه د ګټې په اخیستلو سره تحقق مومي.

دغه مبارک آیت د الله تعالی د دوو صفتونو "قوی" او"عزیز" په یادولو سره پای ته رسیږي، یعنې الله تعالی هغه قوي او غالب ذات دی چې هېڅکله هم ماتې نه خوري او نه هم مغلوبیږي.

### د آیت لنډ مفهوم

په دی مبارک آیت کې الله تعالی د دې لارښوونه کوي، موږ رسولان د څرګندو او روښانو دلایلو، معجزاتو سره ولیږل او پر هغوی مو هغه کتابونه نازل کړل چې د شریعت پر احکامو مشتمل دي او تله مو د عدالت لپاره نبنه و ګرځوله، تر څو خلک په خپلو چارو او معاملاتو کې د انصاف خیال وساتي.

همدا راز د دی یادونه کوي موږ اوسپنه پیدا کړې ده چې په هغې کې ډېر زور او طاقت دی او د خلکو لپاره په هغې کې ډیرې ګټې دي، ترڅو الله تعالی خپل علم هغوخلکو ته ظاهر کړي چې په غیب سره د الله او د هغه د رسول مرسته او ملا تړ کوي. پرته له شکه الله تعالی هغه قوي او غالب ذات دی چې هېڅکله هم نه مغلوبیږي.

**د پېغمبرانو رالېږلو ته د بشر اړتيا**

د دې لوست مبارك آيت د قرآن عظيم الشان د هغو آيتونو له جملې څخه دی چې د انبياوو علیهم السلام د بعثت او د بعثت د ځينو موخو په اړوند راغلي دي. بندګانو ته د پېغمبرانو رالېږل پر هغوی باندې د الله تعالی ستر نعمت دی ځکه چې پېغمبرانو علیهم الصلاة السلام د هدايت د بلو ډيو په څېر د تاريخ په مختلفو پړاوونو کې خلکو ته د کفر او جهل له تيارو څخه د علم او ايمان د رڼا په لور د وتلو لارښوونه کړې ده.

لکه څرنګه چې انسان د خپل پايښت او روغتيا لپاره هوا او خوړو ته اړتيا لري همدارنګه د الله تعالی هدايت، چې د پېغمبرانو له لارې انسانانو ته رسيږي، په دنيا کې د هغوی د نېکمرغۍ اساس او په آخرت کې له اور نه د خلاصون لپاره اړين بلل کيږي. ځکه د سمې او نا سمې لارې توپيرکول، حق له باطل نه بېلول، د ايمان او الحاد ترمنځ توپيرکول او اسلام له کفر نه جلاکول يوازې اويوازې د الهي وحې د لارښوونو له لارې چې د پېغمبرانو په واسطه انسانانو ته وړاندې کيږي، ممکن دی.

الله تعالی د پېغمبرانو د رالېږلو سبب داسې بيان کړی دی:﴿كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً فَبَعَثَ اللَّهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ..﴾ [البقرة: ۲۱۳]. **ژباړه:** ټول خلك يو امت و، نو پاك الله زيري وركوونكي او ډاروونكي پېغمبران واستول او نازل يې كړ له هغوی سره كتاب په حقه ترڅو پريكړه وكړي د خلكو په مينځ كې په هغه څه كې چې اختلاف يې پكې كړی و.

د دې مبارك آيت پر اساس د ځمكې لومړني كسان د حق او رښتيني دين پيروان وو، خو د وخت په تيريدلو سره د دوی ترمنځ شخړې او خپلمنځي اختلافات زيات شول او د سمې لارې په پريښودلو يې په ځمكه كې د تېرې او فساد لاره اختياره كړه. الله تعالی د دوی د اصلاح او هدايت لپاره پېغمبران راولېږل چې په دې سره د پېغمبرۍ لړۍ پيل شوه.

له عبد الله بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې فرمايي: «كان بين آدم و نوح عشرة قرون، كانوا على الحق حتى اختلفوا فبعث الله إليهم نوحا و النبيين من بعده»[1]

**ژباړه:** د آدم او نوح عليهما السلام ترمنځ د زماني واټن (فاصله) لس پيړۍ وه. د دې مودې په لړ كې خلكو په سمې او رښتيني لارې ژوند تيراوه. وروسته د خلكو تر منځ اختلافات او شخړې پيدا شوې، نو له دې امله الله ﷻ نوح او نور پېغمبران عليهم الصلاة و السلام د دوی د هدايت او لار ښوونې لپاره راولېږل.

[1] – المستدرک علی الصحيحين تفسير سورة حم عسق

# د انبیاوو مقام

**نبوت الهي ورکړه ده**

د قرآن کریم د آیتونو او مبارکو احادیثو له نصوصو نه دا څرګندیږي چې نبوت د الله تعالی ورکړه ده او د هیچا په هڅه او هاند سره دا مقام چاته نه حاصلیږي. دې ستر مقام ته د رسیدلو لپاره دنیوي اسباب او عوامل لکه د انسان غوښتنه، وراثت، ځانګړې هڅه او هاند، بشري ذکاوت او نبوغ، مال او عزت، کورنی مقام، ټولنیز مقام او داسې نور لاملونه کوم تاثیر نه لري. الله تعالی په دې اړه فرمايي: ﴿اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ﴾ [الحج: ٧٥]. **ژباړه**: الله له ملایکو او انسانانو نه استازي غوره کوي، بې شکه الله ښه اوریدونکی او د هر څه لیدونکی دی.

همدارنګه الله تعالی په بل آیت کې د ځینو پیغمبرانو علیهم الصلاة و السلام ستاینه کوې او داسې فرمايي: ﴿وَإِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ﴾ [ص: ٤٧] **ژباړه**: او بې شکه هغوی زموږ په وړاندې له غوره کړو شوو ښو خلکو څخه وو.

**پیغمبران د الله تعالی غوره بنده ګان دي**

انبیاء علیهم السلام د ځمکې پر سر د الله تعالی غوره بنده ګان دي. د پیغمبرانو علیهم السلام ژوند د انساني ژوندانه په ټولو اړخونو کې د لوړو پوړیو د کمال یو څرګند عیني مثال دی. د دغو کمالاتو موجودیت د انبیاوو علیهم السلام د رسالت له درندې او ارزښتناکې دندې سره مطا بقت لري، ځکه چې پیغمبران علیهم السلام د خلکو او ټولنې د لارښوونې دنده پر غاړه لري او د بشري ټولنې د غوره کسانو په توګه باید دوی د هغو بشپړو صفاتو خاوندان وي چې هغه په نورو انسانانو کې موندل کیدای نشي.

الله تعالی د ځینو پیغمبرانو په ستاینې او وصف کې داسې فرمايي:

﴿وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَإِقَامَ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءَ الزَّكَاةِ وَكَانُوا لَنَا عَابِدِينَ﴾ [الأنبياء: ٧٣]. **ژباړه**: او ګرځولي وو موږ هغوی (په مخکني آیت کې یاد شوي پیغمبران) امامان چې زموږ په امر به یې (خلکو ته) لار ښوونه کوله او وحې کړې وه موږ

په لور د هغوی د نیکو کارونو ترسره کول او اداء کول د لمانځه او ورکړه د زکات او هغوی زموږ عبادت کوونکي وو.

د پیغمبرانو علیهم السلام مهم صفات، چې په څرګند ډول په قرآن کریم کې راغلي دي، په لاندې ډول دي:

- صدق او رښتینولي.
- تبلیغ او بلنه.
- امانت.
- ذکاوت.
- له هغو نیمګړتیاوو نه لرل چې د خلکو د کرکې لامل ګرځي.
- د پیغمبرانو علیهم السلام پاکې او عصمت له ګناه نه او د وحې په رسولو کې له تېروتنې څخه.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته، پیغمبرانو ته د بشر اړتیا او د پیغمبرانو د اوصافو په اړه علمي خبرې اترې وکړي.

**د پیغمبرانو دندې**

د قرآن عظیم الشان د نصوصو په رڼاکې د انبیاوو علیهم السلام سترې او مهمې دندې په لاندې ډول دي:

۱. د الله تعالی د پېژندنې، توحید او عبادت په لور د خلکو دعوت، الله تعالی په قرآن عظیم الشان کې په دې اړه داسې فرمایي: ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا نُوحِي إِلَيْهِ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدُونِ﴾ [الأنیاء: ۲۵]. **ژباړه:**اونه دی لیږلی موږ (ای پیغمبره) له تا نه وړاندې هیڅ استازی مګر وحې کړې موږ د هغه په لور چې پرته له ما نه بل معبود نشته نو یوازې زما عبادت وکړئ.

۲. خلکو ته د الله تعالی د اوامرو او نواهیو رسول او تبلیغ کول، الله تعالی فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ..﴾ [المائده: ٦٧]. **ژباړه:** ای رسوله، هغه څه خلکو ته ورسوه چې ستا د رب له لوري پر تا نازل شوي دي.

۳. د سمې او نېغې لارې په لور خلکو ته لارښوونه کول، الله تعالی په دې اړه داسې فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا. وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ بِإِذْنِهِ وَسِرَاجًا مُنِيرًا﴾ [الأحزاب: ٤٦]. **ژباړه:** ای پیغمبره، موږ ته شاهد، زیری ورکوونکی، ډارووونکی او د الله په حکم د هغه لورې ته بلونکی لیږلی يې او روښانه څراغ مو ګرځولی يې.

٤. د بشر لپاره غوره نمونه: الله تعالی فرمايي: ﴿لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ..﴾ [الأحزاب: ۲۱]. **ژباړه:** په يقين سره ده ستاسې لپاره په (کړنو) د رسول الله کې ښه او غوره نمونه (اقتدا) ده.

٥. خلکو ته د هغوی د خلقت او پيدايښت او وروستني برخليك يادونه او دا چې وروسته له مرګ نه انسان ته څه پيښيږي، الله تعالی فرمايي: ﴿يَا مَعْشَرَالْجِنِّ وَالْإِنْسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي وَيُنْذِرُونَكُمْ لِقَاءَيَوْمِكُمْ هَذَا...﴾ [الأنعام:۱۳۰]. **ژباړه:** ای ډلې د پيريانو او انسانانو، ايا نه وو راغلي تاسې ته رسولان له تاسې نه چې بيانول به يې پر تاسې آيتونه زما او تاسې يې ډارولئ د دې ورځې له ملاقات څخه.

٦. د آخرت د ژوندانه په لور د بشر پام اړول او د فاني دنيا د ژوندانه په خوندونو کې له ډوبيدو نه د هغوی ژغورل، چې د سترګو په رپ سره تيريږي او له منځه ځي. الله تعالی د دنيايي ژوند او د هغه د زوال په هکله داسې فرمايي: ﴿وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَلَلدَّارُ الْآخِرَةُ خَيْرٌ لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ [الأنعام: ۳۲]. **ژباړه:** او نه دی ژوند د دنيا، مګر لوبه او عبث او بې شکه. د آخرت کور غوره دی لپاره د هغو کسانو چې پرهېزګاري کوي، ايا تاسې عقل په کار نه اچوئ ؟

۷. پر خلکو د اتمام حجت او دليل قائمولو لپاره، الله تعالی فرمايي: ﴿رُسُلًا مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا﴾ [النساء: ١٦٥]. **ژباړه:** رسولان زيري ورکونکي او ډارونکي (ليږل شوي)دي ترڅو د هغو له ليږلو وروسته د خلکو سره د الله په مقابل کې کوم حجت او دليل پاتې نشي او الله په هر حال غالب او حکيم دی.

## د پېغمبرانو علیهم السلام شمیر او د ځینو نومونه

د یو حدیث پر اساس د پېغمبرانو علیهم الصلاة و السلام شمیر زیات او کم یو لکك او ځلرویشت زرو ته رسیږي. د الله تعالی دغه غوره بنده ګان په مختلفو زمانو کې د خلکو د هدایت او لارښوونې لپاره رالیږل شوي وو.

د قرآن عظیم الشان د نصوصو له مخې هېڅ داسې امت او ډله نشته چې هغوی ته پېغمبر نه وي لیږل شوی. الله تعالی په قرآن عظیم الشان کې په دې اړه داسې فرمايي: ﴿وَإِنْ مِنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ﴾ [فاطر: ٢٤]. **ژباړه:** او هېڅ داسې کوم امت نه شته چې په هغوی کې ډاروونکی(پېغمبر) نه وي راغلی. په قرآن عظیم الشان کې د (٢٥) پېغمبرانو نومونه یاد شوي چې عبارت، دي له: آدم، نوح، ابراهیم، اسماعیل، اسحاق، یعقوب، داود، سلېمان، ایوب، یوسف، موسی، هارون، زکریا، یحیی، ادریس، یونس، هود، شعیب، صالح، لوط، الیاس، الیسع، ذوالکفل، عیسی او محمد صلوات الله علیهم اجمعین.

په قرآن عظیم الشان کې الله تعالی مسلمانانو ته امر کوي چې پر ټولو پېغمبرانو علیهم السلام باندې ایمان راوړي چې نومونه یې په قرآن کریم کې ذکر شوي او که نه. پېغمبرانو علیهم السلام باندې ایمان راوړل د عقیدې او ایمان له ارکانو څخه یو رکن دی او هیڅوك هم پر ټولو انبیاوو علیهم السلام باندې له ایمان راوړلو پرته مسلمان بلل کېدای نشي. الله تعالی فرمايي: ﴿آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِهِ...﴾ [البقره: ٢٨٥]. رسول او مؤمنانو پر هغه څه ایمان راوړی دی چې رسول ته د هغه د رب له لوري رالیږل شوي دي. دوی ټولو په الله او د هغه په ملایکو، کتابونو او رسولانو ایمان راوړی دی.(او وايي) موږ د الله په پېغمبرانو کې یو تر بله هیڅ توپیر نه کوو. یعنې داسې نه کوو چې پرځینو پېغمبرانو ایمان راوړو او د ځینو نورو له نبوت نه منکرشو.

## محمد ﷺ خاتم النبیین

محمد بن عبدالله ﷺ خاتم النبیین دی او د ده ﷺ په بعثت سره د نبوت لړۍ ختمه او بشپړه شوه او وروسته له هغه څخه د الله تعالی له لوري نه کوم پېغمبر او نه کوم کتاب رالیږل

کیږي. د پېغمبرﷺ له رحلت وروسته د وحي نازلېدل هم بند شو.که چېرې څوك د نبوت دعوه وکړي نو هغه کس دروغجن دی.

قرآن عظیم الشان د ختم نبوت په اړه او دا چې حضرت محمد ﷺ خاتم النبیین دی داسې فرمایلي دي:﴿مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِنْ رِجَالِكُمْ وَلَكِنْ رَسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا﴾ [الأحزاب: ٤٠]. **ژباړه:** محمد ستاسي د سړیو د هېڅ یوه پلار نه دی، بلکې د الله رسول او اخرنی پیغمبر دی او الله پر هر څه ښه پوه او عالم دی.

د قرآن کریم د آیتونو او نبوي احادیثو پر اساس ټول انسانان د الله تعالی له لوري مکلف دي چې پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې د وروستني پیغمبر په حیث ایمان راوړي او د هغه ﷺ فرمانبرداري وکړي. څوک چې د محمد ﷺ په نبوت او رسالت ایمان نه را وړي هغه کس کافر دی او په آخرت کې به د دوزخ په اور کې سوځي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

❖ الله ﷻ د زمانې په هر پړاو کې د بندګانو د هدایت او لارښوونې لپاره انبیاء علیهم السلام را لیږلي دي.

❖ د انبیاوو علیهم السلام بعثت د الله تعالی له لوري پر انسانانو د هغه د رحمت او مهرباني نښه ده.

❖ لکه څرنګه چې انسان د خپل پایښت او روغتیا لپاره هوا او خوړو ته اړتیا لري په همدې توګه د پېغمبرانو وجود هم د بشر د لارښوونې لپاره اړین بلل کیږي.

❖ انبیاء علیهم السلام ټول د بشر له جنس څخه وو. دوی ټول نیک او غوره انسانان وو. نور انسانان که هر څومره غوره او نیک اعمال ترسره کړي بیا هم د انبیاوو مرتبې او مقام ته نشي رسېدای.

❖ پیغمبران علیهم السلام له ګناه نه معصوم او پاک دي او د دین او رسالت په تبلیغ کې هیڅکله نه سهوه کیږي او نه هم تېروځي.

❖ پر پېغمبرانو علیهم السلام باندې ایمان راوړل د عقیدې او ایمان له ارکانو څخه یو رکن دی. که څوك د یو پېغمبر له نبوت نه منکر شي. هغه کافر دی.

❖ حضرت محمد ﷺ آخري پېغمبر دی. وروسته له هغه څخه بل کوم پېغمبر نه راځي. ټول انسانان د الله تعالی له لوري مکلف دي چې پرحضرت محمدﷺ باندې د وروستني پېغمبر په حيث ايمان راوړي او د هغه ﷺ فرمانبرداري وکړي.

❖ له پېغمبرﷺ سره مينه اومحبت لرل، د هغه اطاعت کول، د هغه عزت او درناوی، د هغه ﷺ په سيرت او سنتو پوهېدل، د هغهﷺ له عظيم الشأن لوړمقام، مرتبې او شخصيت نه دفاع کول او ټولو نړيوالو ته د اسلام د سپېڅلي دين تبليغ د هر مسلمان سړي او مسلمانې ښځې اسلامي او شرعي وجيبه ده.

❖ د مسلمانانو مکلفيت د پېغمبرﷺ په وړاندې چې له هغه سره د مينې او دوستۍ د اظهار علامت دی او د مسلمانانو لپاره د اجر او ثواب حاصلولو لامل گرځي. هغه پر پيغمبرﷺ باندې د زيات درود ويل دي. کله چې د پيغمبرﷺ مبارک نوم ياد شي مستحب دی چې پر هغه ﷺ باندې درود وويل شي.

## پوښتنې

۱.ولې د پېغمبرانو عليهم السلام رالېږل د بشريت لپاره اړين بلل کيږي؟ څرگند يې کړئ.

۲.د پيغمبرانو عليهم السلام مهمې دندې کومې دي؟ ځينې يې بيان کړئ.

۳.دا څه حکمت دی چې پيغمبران عليهم السلام د بشر له جنس څخه دي؟

٤.که څوک پر ځينو پيغمبرانو عليهم السلام ايمان راوړي او د ځينو نورو له نبوت نه منکر شي، د هغه حکم څه شی دی ؟

۵.د پيغمبرﷺ په وړاندې د مسلمان دنده او مسئووليت څه شی دی؟ څرگند يې کړئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د آيتونو او حاديثو په رڼا کې د پيغمبرانو د اوصافو او دندو په اړه يوه مقاله وليکي چې له (۲۰) کرښو څخه کمه نه وي.

# اسلام غوره دین دی

قال الله تعالی: ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ وَمَنْ يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ۞ فَإِنْ حَاجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ وَقُلْ لِلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ أَأَسْلَمْتُمْ فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوْا وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ﴾ [آل عمران:۱۹-۲۰].

**د کلمو معنا**

{الدِّينَ}: شریعت او ملت.

{الْإِسْلَامُ}: تسلیمېدل، غاړه ایښودل، د اسلام دین.

{بَغْيًا}: د کینې او رخې له مخې.

{حَاجُّوكَ}: شخړه کوي له تا سره، دلایل وړاندې کوي.

{أَسْلَمْتُ}: ما سپارلی دی، تسلیم او منقاد یم.

{اهْتَدَوْا}: لیار یې وموندله، هدایت یې وموند.

{تَوَلَّوْا}: وګرځېدل هغوی، سر غړونه یې وکړه.

{الْبَلَاغُ}: رسونه، تبلیغ.

**ژباړه**

بې شکه د الله په وړاندې (ترټولو غوره) دین اسلام دی او اختلاف نه دی کړی( د اسلام د قبلولو په اړه) هغو کسانو چې کتاب ورکړ شوی دی(اهل کتابو) مګر وروسته له هغه چې علم او پوهه ورته راغله (یعني په حقیقت پوه شول) خو د خپل منځي کینې او حسد له کبله یې اختلاف ته ملا وتړله. څوک چې د الله تعالی له آیتونو نه منکر شي (نو پوه دې شي چې) الله پاک ډېر ژر حساب کوونکی دی. که (د کبر له مخې) دوی له تا سره(ای محمده) جګړه کوي نو ووایه سپارلی دی ما خپل مخ خاص لپاره د الله تعالی(د الله حکم ته تسلیم اومنقاد یم) او زما ملګري (متابعت کوونکي)هم هغه ته تسلیم دي او ووایه هغو کسانو ته چې ورکړل شوی دی کتاب او نالوستو ته آیا اسلام مو راوړی دی؟ که اسلام یې راوړ نوپه تحقیق سره سمه او نېغه لاره یې وموندله او که وګرځېدل او

سرغړونه يې وکړه، نو بې شکه پرتا( يوازې د حق) رسونه ده. او الله پاك خپل بند ګان ښه ويني.

**تفسير**

**د مبارکو آيتونو شرح او څېړنه**

د(**دين**) کلمه په لغت کې د جزا او بدل په معنا ده او دلته له (دين) نه مطلب عقايد او هغه احکام دي چې د الله تعالی له لوري پرحضرت محمد ﷺ نازل شوي دي نو دين په دې مبارك آيت کې د ملت او شريعت په معنا دی.

(**اسلام**) د تسليمېدلو او انقياد په معنا دی او دلته له (**اسلام**) نه مراد هماغه حنيف دين دی چې محمد ﷺ د ټول بشريت لپاره راوړی دی.

د (**عند الله**) جمله د عربي ژبې د قانون او دستور له مخې حذف شوي کلمې لکه (ثابت) يا (مقبول) پورې تړاو لري، يعنی د الله په وړاندې ثابت او مقبول دين. د(**عند الله**) په جمله کې د اسلام د دين نسبت اللهﷻ ته، د دغه دين په شرف او غوره والي دلالت کوي اومعنا يې داسې ده چې اسلام د الله ﷻ هغه دين دی چې د خپلو بندګانولپاره يې غوره کړی دی. د دې وينا پر بنسټ د ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ **ژباړه:** يوازينی غوره او معتبر دين د الله تعالی پر وړاندې د اسلام دين دی، يعنی هغه شريعت چې محمد ﷺ له ځان سره راوړی دی.

د﴿الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ﴾ **په** جمله کې مراد له (**کتاب**) څخه هغه آسماني کتابونه دي چې مخکې له قرآن کريم څخه نازل شوي وو لکه د تورات او انجيل کتابونه. د دغو کتابونو پيروانو ته اهل کتاب (يهود او نصاری) ويل کيږي. د ﴿إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ﴾ په جمله **کې** له (**علم**) نه مراد د وروستني پيغمبر په حيث د حضرت محمد ﷺ د پيغمبرۍ پرحقانيت د اهل کتابو د علم او پوهې حاصلېدل دي. د(**بغيا**) کلمه دلته د کينې اوحسد په معنا ده. د ﴿وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ﴾ **د** جملې مفهوم دا دی چې: د اهل کتابو مخالفت د اسلام له دين يعنې له هغه څه سره چې حضرت محمد ﷺ راوړی دی، د پيغمبر د رښتينولۍ او د اسلامي دين له حقانيت نه د جهل او بې علمۍ له مخې نه دی، بلکې دغه مخالفت د علم له حاصلېدلو نه وروسته د حسد له امله دی.

د (**کفر**) کلمه په لغت کې د انکار په معنا ده او دلته ترې مراد د حضرت محمد ﷺ له نبوت نه انکار کول او د اسلام نه منل دي.

د ﴿فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ په جمله کې د هغو کسانو لپاره چې د اسلام او خاتم النبیین له پیغمبرۍ نه انکار کوي یو ډول وعید او تهدید وجود لري، یعنې هغه کسان چې کفر او سرغړونه کوي، الله تعالی له هغوی سره محاسبه کوي او د الله تعالی محاسبه ډېر ژر ده چې دلته د حسا ب سرعت د عذاب په سختۍ دلالت کوي.

له﴿حَاجُّوكَ﴾ څخه مراد د پیغمبر ﷺ سره د اهل کتابو عناد، سرغړونې، جګړې او د اسلام د سپېڅلي دین پر ضد د هغوی غلیمانه ناسم تعبیرونه دي.

د ﴿أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ﴾ **د** جملې معنا د الله تعالی احکامو او اوامرو ته غاړه ایښودل اوتسلیمېدل دي او دلته (**وجه**) د ذات اوځان په معنا ده، یعنې ما خپل ځان د الله حکم ته تسلیم او منقاد کړ. د ﴿فَإِنْ حَاجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ﴾ جملې مفهوم دا دی چې که چېرې کفار او اهل کتاب او د دوی په څېر نور خلک له تا سره د عناد، تکبر او غرض په مقصد شخړې او جګړې ته ملا وتړي نو د هغوی د دروغو او تکبر پروا مه ساته او هغوی تهووایه چې زه او زما پیروان د الله تعالی اوامرو او احکامو ته تسلیم یو.

له ﴿الْأُمِّيِّينَ﴾ نه مراد هغه کسان دي چې د هېڅ کوم کتاب پیروان نه دي یعنې د عربو مشرکان. د﴿فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوْا﴾ جمله هغه ګټه او فایده بیانوي چې اهل کتاب او مشرکین یې د اسلام د سپېڅلي دین د قبلولو په صورت کې ترلاسه کوي، ځکه چې هغوی د الله تعالی د اوامرو په عملي کولو او د اسلام د سپېڅلي دین په قبلولو سره سمه او نېغه لاره مومي او د کفر او شرک له تیارو نه بهر راووځي.

د﴿وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ﴾ په جمله کې د پیغمبرعلیه الصلاة و السلام د زړه لپاره تسلیت دی او معنا یې داسې ده: که چېرې کفار د اسلام د سپېڅلي دین له منلو نه منکر شي او سر غړونه وکړي، نو ای محمده، په دې سره تاته هېڅ ضرر او تاوان نشته، ځکه تا خپله دنده، چې خلکو ته د سپېڅلي دین تبلیغ و، په سمه توګه تر سره کړې دی.

دغه مبارک آیتونه د﴿وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ﴾ په جملې سره پای ته رسیږي چې دغه جمله پر وعده او وعید دواړه مشتمله ده، یعنې نیک عملو مؤمنانو ته د اجر او ثواب ورکولو وعده او کافرانو ته د سخت عذاب تهدید، ځکه چې الله تعالی د بندګانو پر کړنو او زړونو خبر دی او هر چا ته د هغه د کړنې او عمل سره سم جزا ورکوي.

**دآیتونو لنډ مفهوم**

یوازینی دین چې الله تعالی یې خوښوي او پر ټولو پیغمبرانو یې نازل کړی دی او پرته له هغه بل دین نه قبلوي هغه د اسلام سپېڅلی دین دی. د اسلام دین د الله تعالی اوامرو او احکاموته د غاړه ایښودلو یعنې د الله تعالی بندګی، فرمان برداری او د هر عصر د پیغمبرانو د بعثت پر مهال د هغوی اطاعت کولو ته ویل کېږي. د پیغمبرانو د لړۍ وروستنی پیغمبر حضرت محمد ﷺ دی چې ټول انسانان باید د ده د سپېڅلي دین اسلام چې د ټولو انبیاوو د ادیانو بشپړ شکل دی پیروي وکړي. الله تعالی د پیغمبر ﷺ له بعثت وروسته پرته له اسلام نه بل هیڅ دین نه قبلوي. د اسلام د منلو په هکله د اهل کتابو یعنې یهودو او نصاراؤ اختلاف او په مختلفو ډلو د هغوی ویشل کېدل، دا د هغوی د حسد، په دنیا پورې د هغوی د زړه تړلو او مقام حاصلولو له امله دی چې وروسته د دلایلو له وړاندې کولو او د پیغمبرانو او کتابونو له رالېږلو، یعنې د اسلام د دین پر حقانیت او د وروستني پیغمبرﷺ پر رښتینولۍ له علم او پوهې حاصلېدلو وروسته، پېښ شوی دی. هغه کسان چې د الله تعالی له آیتونو انکار کوي د حق له منلو او د الله تعالی له احکامو او اوامرو نه چې د اسلام سپېڅلي دین منل دي، سرغړونه وکړي، الله تعالی ورسره محاسبه کوي او د الله تعالی محاسبه ډېر ژر او سخته ده چې هر چا ته د هغه د کړنې او عمل سره سم جزا ورکول کیږي.

ای پیغمبره، که چېرې اهل کتاب او مشرکان د دلایلو له راوړلو نه وروسته د حق دین یعنې د اسلام له منلو نه منکرشي او د تکبر په غرض له تا سره شخړه وکړي، نوهغوی ته ووایه چې زه او زما مؤمن پیروان د الله تعالی اوامرو او احکامو ته تسلیم او تابع یو. اهل کتابو او مشرکینو ته ووایه که چېرې تاسې د اسلام سپېڅلی دین ومنئ، نو سمه او نېغه لاره مومئ او که چېرې د اسلام د سپېڅلي دین له منلو انکار او سر غړونه وکړئ، نو الله تعالی به له تاسې سره محاسبه وکړي او زه خلکو ته د حق له رسولوپرته بل کوم مسؤولیت نه لرم چې هغه مې په ښه او سمه توګه تر سره کړی دی. الله تعالی د بندګانو پر ټولو شیانو یعنې زړونو او کړنو خبر دی او هر چا ته د هغه د عمل مطابق جزا ورکوي.

اتم لوست

د تېر لوست پاتې برخه

# اسلام غوره دين دی

**د اسلام د دين معنا او مفهوم**

لكه څرنګه چې وړاندې ذكر شو د اسلام لغوي معنا انقياد او تسليمېدل دي او اسلام د الله تعالى اوامرو ته د غاړې ايښودلو په معنا دی، خو دا انقياد بايد د انسان په خپل رغبت او رضا وي، ځكه په كائناتو كې ټول مخلوقات د انسان په شمول په خپل خلقت كې د الله تعالى تكويني قوانينو ته جبراً تسليم او منقاد دي او له هغو نه د مخالفت توان نه لري. له دې امله په دې ډول انقياد باندې كوم ډول ثواب او يا عقاب نه مرتبېږي. د قرآن كريم په ځينو آيتونو كې اسلام په همدې معنا سره ذكر شوی دی.﴿أَفَغَيْرَ دِينِ اللَّهِ يَبْغُونَ وَلَهُ أَسْلَمَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَإِلَيْهِ يُرْجَعُونَ﴾ [آل عمران: ٨٣]. **ژباړه:** آيا كافران د الله له دين څخه پرته بل دين غواړي؟ (حال دا چې) ټولو موجوداتو په اسمانونو او ځمكه كې هغه ته په خوښه او نا خوښه غاړه ايښې ده او ټول هغه ته ورګرځول كيږي.

د اسلام د دين جوهر او اساس په خپل اختيار سره د الله تعالى اوامرو او احكامو ته د انسان غاړه ايښودل دي چې د اجر، ثواب اوعذاب د وركولو لپاره اړين بلل كيږي. دغه انقياد او تسليمېدل بايد په بشپړه توګه وي او انسان بايد د الله تعالى شريعت او قانون په عام او تام شكل سره په خپل فردي، ټولنيز ژوند كې پلی كړي او دا هماغه دين دی چې ټولو انبياؤ عليهم السلام خلك د دې لوري ته دعوت كړي دي او په خپله يې هم په همدې مفهوم د اسلام د سپېڅلي دين پيروي كړې ده. الله ﷻ فرمايي: ﴿وَمَنْ يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى وَإِلَى اللَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾ [لقمان:٢٢]. **ژباړه:** او هرڅوك چې خپل مخ (ځان) الله تعالى ته وسپاري او نېكوكار وي نو منګوله يې ولګوله هغه په رسی (كړۍ)كلكې او د ټولو كارونو پاى يوازې د الله تعالى په لور دی.

قرآن كريم د ابراهيم اويعقوب عليهما السلام په هكله داسې فرمايي:﴿وَوَصَّى بِهَا إِبْرَاهِيمُ بَنِيهِ وَيَعْقُوبُ يَا بَنِيَّ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَى لَكُمُ الدِّينَ فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ﴾ [البقرة: ١٣٢].

**ژباړه:** او وصيت كړی و په دې دين ابراهيم او يعقوب هم خپلو زامنو ته، ای زما زامنو!

بېشکه الله غوره کړی دی ستاسې لپاره همدا دین، نو باید مړه نه شئ خو چې یاستئ تاسې مسلمانان.

### د اسلام اطلاق

د نبوت د لړۍ له بشپړېدلو او د وروستني پیغمبر په توګه د حضرت محمد ﷺ له بعثت څخه وروسته، د اسلام اطلاق پر هغه دین کیږي چې د الله تعالی له لوري حضرت محمدﷺ ته وحي شوی دی، نو ټول انسانان مکلف دي او له هغوی نه دا غوښتنه شوې ده چې دغه دین ومني او احکامو ته یې غاړه کیږدي. دا هماغه دین دی چې د دې لوست په مبارکو آیتونو کې په بشپړ صراحت سره د الله تعالی یوازینی غوره او منل شوی دین بلل شوی دی.

د یادو شوو مبارکو آیتونو په رڼا کې علماوو د اسلام دین داسې تعریف کړی دی: "اسلام په خپل اختیار سره الله تعالی ته له خضوع او انقیاد څخه عبارت دی او څرګندونه یې هغه شریعت ته غاړه ایښودل دي چې الله تعالی خپل پیغمبر حضرت محمدﷺ ته وحی کړی دی او هغه علیه السلام یې د دغه شریعت په تبلیغ مکلف کړی دی." [1]

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي په لارښوونه په څو ډلو وویشل شي اوهره ډله دې د اسلام د دین د مفهوم په هکله له یو بل سره بحث او خبرې اترې وکړي.

### اسلام هراړخیز نظام دی

اسلام شامل او هر اړخیز دین دی چې د انسان د ژوندانه ټول اړخونه رانغاړي او د بشر د کړنو، سلوکو او اعمالو د ټولو برخو لپاره څرګند قوانین لري. الله تعالی خپل ګران پیغمبرﷺ ته د اسلام د سپېڅلي دین په اړوند او دا چې د انسان مرګ او ژوند باید د الله تعالی لپاره او د هغه د نظام په چوکاټ کې وي، داسې فرمايي:﴿قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ [الأنعام: ١٦٢] **ژباړه:** ووایه ای محمده، بېشکه زما لمونځ، زما قرباني، زما ژوند او زما مرګ د الله لپاره دی چې د ټولو عالمیانو رب دی.

[1] – اصول الدعوة ، دکتور عبد الکریم زیدان، ۲مخ.

د قرآن عظیم الشان په بل آیت کې الله ﷻ د اسلام د هر اړخیزوالي (شمول)په هکله داسې فرمایلي دي: ﴿مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ..﴾ [سورۀالأنعام:۳۸] **ژباړه:** موږ په دې کتاب کې هېڅ شی نیمګړی نه دی پرېښی.
ځینو مفسرینو په دې آیت کې کتاب په لوح محفوظ سره تفسیر کړی دی یعنې ټول شیان په لوح محفوظ کې لیکل شوي او خوندي ساتل شوي دي.
ځینې نور مفسرین له کتاب نه قرآن کریم مطلب اخلي چې د دې تفسیر پر بنسټ د ټولو شیانو کلیات او اساسات په قرآن کریم کې موجود دي او هر هغه څه چې د انسان د لارښوونې او نېکمرغۍ لپار اړین بلل کېږي. په قرآن کریم کې په تفصیلي او یا کلی بڼه بیان شوي دي تفصیلات او جزئیات یې د پیغمبرﷺ په سنتو کې، چې د قرآن کریم لپاره تفسیر، تشریح بلل کېږي، موجود دي چې دا پخپله د اسلام د سپېڅلي دین په شمولیت دلالت کوي.

**اسلام وروستنی او بشپړ دین دی**

مخکې له دې چې رسول الله ﷺ له دې فاني نړۍ څخه رحلت وکړي، الله تعالی د اسلام دین بشپړ کړ او هغه یې منل شوی او غوره دین وباله او د ځمکې د سر ټول انسانان یې پر دې مکلف وګرځول چې د دې دین پیروي وکړي. الله تعالی په دې اړه داسې فرمایي: ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾ [المائدة: ۳]
**ژباړه:** نن ما پوره کړ د ستاسې لپاره ستاسې دین او ما پوره کړ پر تاسې خپله لورینه او غوره مې کړ ستاسې لپاره اسلام د دین په توګه.
د اسلام د دین دکمال معنا دا ده چې د دې دین تعلیمات او احکام د انسانانو د فردي او ټولنیز ژوند په هره برخه کې د هغوی د اړتیاوو د پوره کولو لپاره داسې دقیق او مطابق دي،که چېرې په سمه توګه تطبیق شي نو د بشریت نیکمرغي تضمینوي. د اسلام د سپېڅلي دین تعلیمات او د احکامو کمال هغه وخت په سمه توګه څرګندېږي چې په عملي او بې پلوه بڼه دغه دین له نورو ادیانو، نظامونو او قوانینو سره پرتله شي.
قرآن کریم په صراحت سره بیان کړی دی چې د الله تعالی پر وړاندې یوازینی منلی شوی دین د اسلام دین دی او پرته له اسلام نه بل هیڅ دین د قبول وړ نه دی. که څوک له اسلام نه پرته بل دین غوره کړي په آخرت کې به ضرور په زیان او تاوان کې وي: ﴿وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ [آل عمران: ۸۵].

**ژباړه:** او هر څوک چې پرته له اسلام نه بل دین غواړي (لټوي) نو وبه نه منل شي له هغه څخه او هغه به په آخرت کې له زیان کارانو څخه وي.

## د اسلام د سپېڅلي دین د ټولو تعلیماتو پلي کولو ته اړتیا

په پورتنیو مبارکو آیتونوکې د اسلام د سپېڅلي دین د شمول او کمال په اړه، چې بل ټکی ډېر مهم او ارزښتناك برېښي، هغه د ژوند په ټولو اړخونو کې په بشپړه توگه د اسلامي احکامو او لارښوونو پلي کول دي؛ ځکه په ځینو چارو کې د اسلام د احکامو او لارښوونو نیمگړی او ناقص تطبیقول او په ځینو نورو کې د هغو له پلي کولو نه ډډه کول، سره له دې چې مطلوبې پایلې نه ورکوي، د قرآن او سنت له نص او روح نه مخالفت بلل کیږي او د دنیا او آخرت د تباهۍ او زیان لامل گرځي. الله تعالی په قرآن کریم کې په دې اړه داسې فرمایي:﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِي السِّلْمِ كَافَّةً وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ﴾ [البقره: ۲۰۸]. **ژباړه:** ای هغو کسانو چې ایمان مو راوړی دی په اسلام کې په بشپړ ډول ورننوځئ (د اسلام د سپېڅلي دین ټول احکام او تعلیمات ومنئ) او د شیطان پر پلونو مه ځئ، بې شکه چې شیطان ستاسې ښکاره دښمن دی.

یو مفسر د دې آیت په شرحې او تفسیر کې داسې وایي:

"د (سلم) دکلمې، د سین په زور او زیر د اسلام پر دین او سلامتی (د امن په معنا) پر دواړو اطلاق کیږي. یعنې ای مؤمنانو د اسلام په دین کې داخل شئ او د هغه د ټولو تعلیماتو او لارښوونو التزام او پابندي وکړئ. د اسلام د سپېڅلي دین ټول احکام پلي کړئ او د هغو کسانو په څېر مه اوسئ چې د اسلام پر ځینو احکامو ایمان راوړي او ځینې نور احکام یې نه مني او ترې انکار کوي. نو مطلب دا دی چې د اسلام ټول احکام او اوامر ومنئ او پرې عمل وکړئ. "[1]

په بل آیت کې الله تعالي د بني اسرائیلو د بدو اوصافو د بیانولو په لړ کې د هغو کسانو، چې د کتاب ځینې برخې مني او د ځینو نورو له منلو نه انکار کوي، داسې غندنه کړې ده:﴿أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَاءُ مَنْ يَفْعَلُ ذَلِكَ مِنْكُمْ إِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَى أَشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ﴾ [البقره: ۸۵]. **ژباړه:**آیا

---

۱ – تفسیر الوسیط للطنطاوی، د بقری د سورې ۲۰۸ آیت تفسیر

تاسې د کتاب ځینې برخې منئ او ځینې نورې یې نه منئ او انکار ترې کوئ، نو نه ده جزا د هغه چا له تاسې څخه چې کوي دا کار، مګر رسوایي ده په ژوند د دنیا کې او په ورځ د قیامت به وګرځول (وروستل) شي هغوی په لور د سخت عذاب او الله پاک ناخبره نه دی له هغه څه نه چې تاسې یې کوئ.

د کتاب پر ځینو برخو د ایمان راوړلو او له ځینو نورو برخو نه د انکار کولو معنا دا ده چې د کتاب ځینې احکام او الهي اوامر ومني او د ځینو نورو له منلو څخه انکار وکړي چې پایلې یې ډېرې بدې او خطرناکې وي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

- ❖ اسلام د بشر لپاره د الهي دین یو بشپړ او متکامل انځور او وروستنی اسماني دین دی چې له دې وروسته هیڅکله بل کوم دین راتلای نشي.
- ❖ قرآن کریم د انس او جن لپاره نازل شوی دی. د اسلام سپېڅلی دین په هر ځای او عصر کې د ټولو انسانانو لپاره الهي دین دی. د اسلام د دین احکام په هر وخت کې د تطبیقولو وړتیا لري او هېڅکله هم نه زړېږي.
- ❖ یوازینی غوره او معتبر دین د الله تعالی پر وړاندې د اسلام دین دی او څوک چې په دغه دین کې داخل نه وي هغه کافر دی او که چېرې له دنیا څخه کافر ولاړ شي نو د دوزخ د اور مستحق ګرځي.
- ❖ اسلام کامل شامل او هر اړخیز دین، نظام او قانون دی چې د انسان د ژوندانه ټول فردي او ټولنیز اړخونه رانغاړي.
- ❖ د اسلام دین الله تعالی ته د غاړې ایښودلو او تسلیمېدلو په معنا دی، خو دا تسلیمېدل او انقیاد باید د انسان په خپل رغبت او رضا وي نه جبراً، ځکه په کایناتو کې ټول مخلوقات جبراً د الله تعالی سننو او قوانینو ته تسلیم او منقاد دي.
- ❖ اسلام باید د ژوند په ټولو اړخونو کې په بشپړ ډول پلی شي، ځکه د اسلام ناقص او نیمګړی پلي کول د قرآن او سنت له نص او روح نه مخالفت بلل کیږي.

## پوښتنې

۱.د اسلام دین په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.

۲.د لوست د مبارکو آیتونو اجمالی مفهوم ولیکئ او استدلال وکړئ چې د انسان انقیاد او تسلیمدل د اسلام دین ته باید ولې اختیاري وي ؟

۳.د اسلام د دین د کمال او هراړخیز والي (شمول)معنا څه ده؟ په تفصیل سره یې شرح کړئ.

٤.ولې د اسلام دین په هر زمان او مکان کې د پلي کولو او تطبیق وړتیا لري او تعلیمات او احکام یې هېڅکله هم نه زړیږي؟

۵.آیا د اسلام د دین جزئي او ناقص تطبیق د قرآن له آیتونو او نبوي احادیثو سره مطابقت لري؟ ستاسې ځواب باید مستدل او د قرآن او احادیثو له مخې وي.

٦.څوک چې د اسلام په دین مشرف نشي او مړ شي د قرآن او سنت له نظره یې حکم څرنګه دی؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مبارکو آیتونو په رڼا کې یوه مقاله ولیکي چې له (۲۰) کرښو څخه کمه نه وي او لاندیني ټکي راونغاړي.

- د اسلام تعریف او مفهوم.
- د اسلام د سپېڅلي دین د کمال او شمول معنا.
- په فردي او ټولنیز ژوند کې د اسلام د پلي کولو ګټې او ارزښت.

# په اخرت ایمان او پر ژوند يې اغيز

قال الله تعالى: ﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ.فَتَعَالَى اللَّهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ﴾ [المؤمنون: ۱۱۵ – ۱۱۶]

**د کلمو معنا**

أَفَحَسِبْتُمْ: آیا تاسي ګومان کاوه.

عَبَثًا: بې ګټې، عبث، بابېزه.

فَتَعَالَى: نو ډیر لوړ او پورته دی.

الْكَرِيمِ: قدرمن، ستر.

**ژباړه**

آیا تاسي انګیرلي وه (ګومان کړی وو) چې موږ تاسي بابېزه (عبث) پیدا کړي یاست او زموږ لوري ته ستاسي بېرته راګرځېدل نشته؟ نو ډیر لوړ او پورته دی الله، حقیقي پاچا، له هغه پرته بل هېڅ کوم بر حق خدای نشته، هغه ذات د ستر عزتناك عرش څښتن دی.

**تفسیر**

**د آیتونو لنډ مفهوم**

په پورتنیو مبارکو آیتونو کې الله تعالی د هغو کسانو په هکله، چې د آخرت له ورځې او له مرګ نه وروسته له بیا راژوندي کېدلو نه منکر دي او ایمان پرې نه لري، توبیخاً داسې فرمايي: آیا تاسي داسې ګومان کوئ چې الله تعالی تاسي هسې عبث او بابېزه پیدا کړي یاست او ستاسي کار په دې دنیاکې یوازې خوړل، څښل او د دنیا له خوندونو څخه ګټه اخیستل دي او تاسي وروسته له  مرګ نه بیا نه راژوندي کیږئ ؟!

آیا ګومان کوئ چې حساب او کتاب او ستاسو د کړنو پوښتني کولو ته کومه اړتیا نه لیدل کیږي، له تاسو سره محاسبه نه تر سره کیږي او نه هم کوم  ثواب او عذاب شتون لري؟!

نه هېڅکله هم داسې نه ده لکه څرنګه چې تاسي ګومان کوئ. موږ تاسي هېڅکله هم عبث او بابېزه نه یاستئ پیدا کړي، بلکې ستاسې خلقت او پیدایښت د یو علم، حکمت او

څرګندو موخو پر اساس دی او ستاسو ټولو بېرته راګرځېدل د الله تعالی په لور دی او ستاسو د هغو کړنو او اعمالو پوښتنه به وشي چې تاسو تر سره کړي دي.
د لوست په دویم آیت کې الله تعالی له عبثو او بې ګټو کړنو نه د خپل سپېڅلي ذات پاکي بیانوي او داسې فرمایي، الله تعالی له دې څخه پاك او سپېڅلی دی چې تاسې بې فایدې او عبث پیداکړي، ځکه دا کار د الله تعالی له لوړ شان سره، چې مطلق حاکم، یوازینی حقیقي معبود او د لوی او ستر عرش څښتن دی، مطابقت نه لري.

**د آیتونو شرح څېړنه**

دغه دوه مبارك آیتونه د هغو آیتونو په سیاق کې قرار لري چې د آخرت په هکله دي او د هغه څه څرګندونه کوي چې د دغې ورځې منکرینو او کفارو ته پېښیږي. لومړنی آیت یعني د ﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ﴾ په پوښتنې سره پیل شوی دی. دې ډول پوښتنې ته په عربي ژبه کې انکاري استفهام ویل کیږي چې د پوښتنې د موضوع د نفی او انکار په معنا راځي او د هغې مخالف مفهوم ثابتوي، یعنې: داسې نه ده لکه څرنګه چې تاسې ګومان کوئ، موږ تاسې بابېزه او بې ګټې نه یاستئ پیدا کړي. د عربي ژبې د بلاغت او دستور له مخې په دې پوښتنه کې د غندنې معنا نغښتې ده؛ په دې معنا الله تعالی د هغو کفارو معتقداتو او نظریو غندنه کوي چې له بعث نه منکر او په دې ناسم ګومان دي چې د دنیا ژوند یوازې د خوراك، څښاك او نورو خوندونو لپاره دی او دا چې له مرګ نه وروسته بیا راژوندي کېدل، حساب او کتاب او د اعمالو پوښتنه وجود نه لري.
د (عبث) کلمه د هغې بې ګټې کړنې او وینا په معنا ده چې کومه فایده پرې نه مرتبیږي.
د ﴿وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ﴾ مبارکه جمله پر مخکینۍ جملې عطف ده چې د آخرت د ورځې د منکرینو د ناسم او غلط ګومان نفې کوي او د بعثت پر حتمي واقع کېدلو او دا چې د ټولو رجوع د الله تعالی په لور ده، تأکید کوي.
د ﴿فَتَعَالَى اللَّهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ﴾ جمله له عبثو او بې ګټو کړنو نه د الله تعالی پاکي او سپېڅلتیا بیانوي او له هر هغه څه څخه چې د هغه له لوړ شان سره مناسبت او سمون نه لري، پاك او منزه دی او هر کار یې د علم او حکمت پر اساس دی.

**د آخرت پر ورځ د ایمان لرلو معنا**

د آخرت پر ورځ ایمان او باور لرل د ایمان د اووګونو ارکانو له جملې څخه یو رکن دی او له دې ورځې څخه انکار کول کفر دی. د قرآن کریم آیتونه او د پیغمبراکرمﷺ احادیث پر دې ګواه دي چې د آخرت پر ورځ له باور پرته د انسان ایمان نه صحیح

کیږي. د آخرت پر ورځ ایمان ډېر اهمیت او ارزښت لري ځکه چې په قرآن کریم کې ډېر ځله پر الله تعالی له ایمان سره یو ځای ذکر شوی دی. الله تعالی په دې آیت کې فرمایلي دي: ﴿مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾ (المائده:٦٩). **ژباړه:** هرچا چې په الله او د آخرت په ورځ ایمان راوړ او نېک کارونه يې وکړل، نو هغوی به نه ډارېږي او نه به غمجن کیږي.

پیغمبرﷺ په یو مشهور حدیث کې، چې د جبرئیل حدیث باندی یادیږي د آخرت پر ورځ ایمان او باور لرل د ایمان د ارکانو له جملې څخه بللی او داسې يې فرمایلي دي: "أن تؤمن بالله وملائكته وكتبه ورسله واليوم الآخر وتؤمن بالقدر خيره وشره" [1] **ژباړه:** ایمان په الله تعالی، د هغه پر ملایکو، د هغه پر کتابونو، د هغه پر رسولانو، د آخرت پر ورځ او د خیر او شر په تقدیر چې د الله تعالی له لوري دی، باور او یقین لرل دي.

د قرآن کریم د آیتونو او د رسول اللهﷺ د احادیثو پر بنسټ د آخرت پر ورځ ایمان لرل په لاندینیو عناصرو مشتمل دي:

- د قیامت پېښیدل، په دې معنا چې دنیا پای ته رسیږي او ټول مخلوقات د خپل خالق په لور بېرته راګرځي.
- له مرګ نه وروسته بیا راژوندي کېدل، هغه ورځ چې الله تعالی به هغه کې ټول مخلوقات داسې بیا راژوندي کوي لکه څرنګه چې يې په لومړي ځل پیدا کړي وو.
- حشر یا په یو ځای کې د ټولو مخلوقاتو جمع کېدل.
- حساب.
- د اعمالو وزن.
- حوض.
- صراط (لاره).
- جنت.
- دوزخ (جهنم).
- د قبر عذاب او نعمت [2]

---

[1] -صحيح مسلم- كتاب الإيمان.

[2] - د آخرت د ورځې د تفصیل د پوهېدلو لپاره دې د عقایدو کتابونه وکتل شي.

لسم لوست
د تېر لوست پاتې برخه

## په آخرت ایمان او پر ژوند يې اغيز

**پر آخرت ایمان لرل د مهمو پوښتنو لپاره ځواب دی**

د انسان په ذهن کې تل درې ارزښتناکې او برخلېك جوړوونکې پوښتنې شتون لري:

١- موږ له کوم ځای څخه راغلي یو؟

٢ - موږ په دې دنیا کې د کوم هدف لپاره ژوند کوو؟

٣- زموږ وروستنی برخلېك به څه وي او وروسته له مرگ څخه به چېرته ځو؟

دغو پوښتنو د تل لپاره؛ په پخوانیو زمانو او اوسني عصر کې د بشر ذهن ځان ته اړولی دی چې دغو پوښتنو ته د ځواب څرنگوالي د افرادو او بشري ټولنو د برخلیك په ټاکلو کې ستره ونډه لري.

دغو دريو پوښتنو ته ځواب په حقیقت کې د انسان تصور، او نړۍ لید جوړوي (هغه له نړۍ سره اشنا کوي) او له نړۍ او کایناتو سره د هغه د زغم او کړنو بڼه ټاکي او د وگړي ژوند ته سم لوری وربښي.

د اسلام سپېڅلی دین دغو پوښتنو ته څرگند ځوابونه لري.

**د لومړۍ پوښتنې ځواب**: موږ ټول انسانان د الله تعالی مخلوق یو او هغه زموږ خالق دی الله فرمايي:﴿هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ حِينٌ مِنَ الدَّهْرِ لَمْ يَكُنْ شَيْئًا مَذْكُورًا.إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ نُطْفَةٍ أَمْشَاجٍ نَبْتَلِيهِ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيرًا﴾ [الانسان:١-٢] **ژباړه**: آیا پر انسان داسې یو وخت یا داسې زمانه تېره شوې چې هغه د یاد وړ کوم شی نه و. بېشکه موږ انسان له گډې شوې نطفې څخه پیدا کړ. موږ هغه ازمايو، نو(له همدې کبله) موږ وگرځاو هغه اورېدونکی او لیدونکی.

**د دویمې پوښتنې ځواب**: زموږ د پیدايښت او ژوندانه اصلي موخه په سمه او هر اړخیزه توگه د الله تعالی عبادت او بنده گي ده: ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ [الذاريات:٥٦] **ژباړه**: او نه دي پيدا کړي ما پېريان او انسانان مگر لپاره د دې چې زما عبادت وکړي.

**د دریمې پوښتنې لنډ ځواب:** د دنیا ژوند د کار پای او آخر نه دی. موږ انسانان پس له مرګه د الله تعالی حضور ته بیا راژوندي کیږو. زموږ د هغو اعمالو او اقوالو پوښتنه به وشي چې موږ تر سره کړي دي او له هغې سره سم به موږ ته جزا راکړل شي.

﴿اللَّهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ [الروم:۱۱] **ژباړه:** الله تعالی هغه ذات دی چې لومړی (له نشت) نه خلك پیدا کوي، بیا یې راګرځوي، بیا تاسې د هغه په لور وروستل کیږئ.

﴿...ثُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ مَرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ...﴾ [ الزمر:۷] **ژباړه:** بیا ستاسو ټولو ورتګ په لور د رب ستاسې دی. هلته به مو له خپلو کړنو څخه خبر کړي.

دا د آخرت د ورځې او پر هغې باندې د باور لرلو معنا ده چې د انسانانو د برخلیك جوړوونکو دریو پوښتنو له جملې څخه دیوې پوښتنې ځواب دی.

**د آخرت پر ژوند د ایمان لرلو اغیزه**

د آخرت پر ورځ ایمان لرل د انسان پر فردی او ټولنیز ژوند باندې ډېره زیاته اغیزه او تاثیر لري. د آخرت پر ورځ د ایمان لرلو پایلې د انسان پر ژوند هغه مهال څرګندیږي چې موږ د یو مؤمن کړنې او سلوك د غیر مؤمن له کړنو او سلوك سره مقایسه کړو.

څوك چې د آخرت پر ورځ ایمان نه لري د ژوند په هکله د هغه لید او تصور توپیر لري، په دې معنا چې دغه شخص پرته له مادي ژوند نه د بل هیڅ شي په هکله سوچ نه کوي. د داسې انسان کړنې، پریکړې، د تفکر بڼه، دوستي، دښمني او هر څه پر مادیاتو څرخیږي او پرته له دې ورسره د ښه او بد، وړ او ناوړ، سم او ناسم د پرتلې او اندازه کولو لپاره بل کوم معیار وجود نه لري.

د داسې کړنو او تفکراتو پایلې دا دي چې انسان د انسانیت له ښو او لوړو درجو او اړخونو نه لیرې کوي او په هغه کې د حیوانیت اړخونو ته داسې وده ورکوي چې په پای کې حیواني ځانګړتیاوې د دغه انسان پر انساني صفاتو غلبه حاصلوي او ورو، ورو په هغه کې انساني فضایل او ښېګڼې وژني. قرآن کریم دغه ډول انسانان له څلوربولو څارویو سره تشبیه کړي دي او د هغوی د بدې پایلې په اړه داسې فرمایي:

﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ وَالنَّارُ مَثْوًى لَهُمْ﴾ [محمد: ۱۲] **ژباړه:** او هغه کسان چې کافران دي ګټه او مزې اخلي له دنیا نه، د څارویو په شان خوراك څښاك کوي او د هغوی وروستنی استوګنځی اور دی.

لکه څرنګه چې قرآن کريم فرمايلي دي، کافر انسان د آخرت پر ورځ ايمان نه لري. هغه يوازې په دې سوچ او فکر کې وي تر څو په دې دنيا کې د ورکړل شوي فرصت څخه زياته مادي ګټه پورته کړي او له لذايذو څخه يې خوند واخلي. د داسې انسان لپاره حلال او حرام کوم ارزښت نه لري او نه هم اخلاقي معيارونه او انساني ښېګڼې او فضايل د هغه لپاره کوم مفهوم لري. دغه نفسي او روحي ناروغ انسانان د خپلو مادي غوښتنو  د پوره کولو لپاره هېڅ کوم بريد او پوله نه پېژني. همدارنګه د دنيوي فاني مال او متاع خوندونو د حاصلولو لپاره د دوی حرص دومره زيات وي چې هيڅ خنډ او قيد نه مني.

په دغو پليتو او ناوړو غوښتنو کې د انسان د پرېوتلو اساسي لامل، کفر، د آخرت پر ورځ د ايمان نه لرل او د کړنو او سلوکو له حساب او کتاب نه انکار کول دي.

د يادونې وړ ده، د آخرت پر ورځ ايمان نه لرل په نړۍ کې د زياتو مفاسدو، بې عدالتيو، ظلمونو، دحق ترپښو لاندې کېدلو او حرص جرړې او ريښې ګڼل کيږي چې د افرادو او بشري ټولنو ژوند په تورو تيارو بدلوي او د نړۍ په مختلفو برخو کې د کور ورانوونکو او تباه کوونکو جګړو لامل ګرځي.

بل لوري ته  هغه کسان چې پر الله تعالی او د آخرت پر ورځ  ايمان لري په يقين سره پر دې پوهيږي چې د فاني دنيا خوندونه، مال او متاع د آخرت د ابدي ژوند په مقابل کې هېڅ کوم ارزښت نه لري او نه ښايي د له منځه تلونکو مادي لذايذو په خاطر توازن له لاسه ورکړو او د ښو او بدو، حلالو او حرامو له پولو تېری وشي.

مؤمن د آخرت پر ورځ کامل باور او ايمان لري او په دنيا کې د حرامو لذايذو، مال او متاع نه د ځان د ژغورلو په صورت کې به الله تعالی هغه ته د دې په بدل کې  څو برابره زيات اجر او ثواب ورکړي. دغه باور مؤمن له ګناه څخه ژغوري او د هغه قول او عمل توازن برابروي.

قرآن کريم په دې اړه داسې فرمايي:

﴿قُلْ أَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِنْ ذَلِكُمْ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَأَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ وَرِضْوَانٌ مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ﴾ [آل عمران: ١٥-١٦] **ژباړه:** ووايه ای محمده، آيا زه  تاسې ته تر دې (مادي پانګو) نه ښه او غوره څيزونو وښايم؟ د هغو کسانو لپاره چې له الله څخه وډارشي. د تل لپاره داسې باغونه دي چې وياليې به پکې رواني وي او پاکې کړای شوي ښځې او د الله رضا (به د دوی په برخه وي) او الله تعالی د خپلو بندګانو ښه ليدونکی دی.

د انسان په ژوند کې د آخرت پر ورځ د ایمان لرلو اهمیت او اثر هغه مهال په روښانه توګه څرګندیږي چې مخ په زیاتېدونکې بشري ستونزې او د انسان پر روح، عقل او نفس باندې د ماده پرستی خطرناکې پایلې په علمي او هر اړخیز ډول تر بحث او څېړنې لاندې ونیول شي.

د نننې بشریت لپاره د بې جلبه مادي او شهواني ژوند له تباه کوونکو څپو څخه د ژغورنې یوازنی لار، پر اخرت ایمان لرل او د مرګ او وروستی ورځې لپاره تیاری کول دي. یقیناً د آخرت پر ورځ ایمان لرل د ماده پرستی له جاذبې او له محض مادي ژوند څخه د انسان د خلاصون تر ټولو غوره وسیله ده چې هغه ته د روحي او اخلاقي فضایلو او د ټولو انساني ښېګڼو د معنوي ژوند د پراخې فضا پر لور ختلو دروازې پرانیزي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

- د آخرت پر ورځ باور لرل د ایمان د ارکانو له جملې څخه یو رکن دی، څوك چې پر دغې ورځ باندې ایمان و نه لري، مسلمان نه دی.
- د ټولو انسانانو ورتګ د الله تعالی په لور دی او هر چا چې په دنیا کې کوم عمل ترسره کړی وي د الله تعالی پر وړاندې به د خپلو کړنو مسؤول وي.
- د آخرت پر ورځ ایمان او باور لرل د انسان پر سلوکو او اعمالو باندې ژور او ارزښتناك اثر لري او د هغه په ژوند کې د توازن او تعادل د رامنځته کېدلو لامل ګرځي.
- د آخرت پر ورځ ایمان لرل د انسان د ژوندانه اړخ څرګندوي او هغه د مادیاتو په ډنډ کې له ډوبیدلو او ورکېدلو نه ژغوري.
- څوك چې د آخرت پر ورځ ایمان نه لري، د هغه څاروي په څېر دی چې په ژوند کې د خوراك، څښاك او شهواني غریزې له ترسره کولو پرته بل کوم مقصد نه لري.
- د آخرت پر ورځ ایمان لرل په انسان کې د انساني فضایلو او ښېګڼو د ویاړ لامل ګرځي او په هغه کې د خیر او برکت د ودې زمینه برابروي.

**فعالیت**

د ټولګي زده کوونکي دې په پنځه کسیزو وړو ډلو وویشل شي. هره ډله دې د انسان پر ژوند د آخرت پر ورځ د ایمان لرلو د تاثیر په هکله خبرې اترې وکړي. په پای کې دې یوتن زده کوونکی د نورو ډلو په استازیتوب زده کوونکو ته د خبرو اترو پایلې ووایي.

## پوښتني

- د لوست په رڼا کې د آخرت پر ورځ د ایمان لرلو مفهوم شرح کړئ.
- په مبارك آیت کې استفهام او یا انکاری پوښتنه د کوم مفهوم افاده کوي؟
- د آخرت پر ورځ د ایمان د ځینو عناصرو نومونه واخلئ.
- هغه څوك چې د آخرت پر ورځ ایمان نه لري، ولې مسلمان نه ګڼل کیږي؟
- د آخرت د ورځې د منکرینو پر ژوند د آخرت پر ورځ د ایمان نه لرلوخو پایلې بیان کړئ.
- د آخرت پر ورځ ایمان لرل څرنګه د انسان په ژوند کې د توازن پیدا کولو لامل ګرځي؟ خپل ځواب د ژوند د حقیقي مثالونو په ترڅ کې بیان کړئ.
- څرنګه کولای شو د آخرت پر ورځ د ایمان لرلو له لارې په مادیاتو کې د ورکېدلو او ماده پرستی مخه ونیسو؟
- د آخرت پر ورځ ایمان نه لرل او یا د هغه ضعف څرنګه کولای شي د انسان د ژوند توازن له منځه یوسي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د قرآني آیتونو او احادیثو په رڼا کې د انسان په فردي او ټولنیز ژوند باندې د ایمان د اغیزې او تاثیر په هکله یوه مقاله ولیکي چې له (۲۰) کرښو څخه کمه نه وي او په هغې کې دې له دلایلو او مثالونو نه استفاده وشي.

# په دین کې اعتدال (منځلاریتوب)

قال الله تعالی: ﴿وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا...الآية ﴾ [البقرة: ١٤٣] و قال تعالی: ﴿يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقّ...الآيةَ﴾ [النساء: ١٧١]

**د کلمو معنا**

| | |
|---|---|
| {جَعَلْنَاكُمْ} | تاسې مو وګرځولئ. |
| {أُمَّةً} | ډله (امت). |
| {وَسَطًا} | منځنی، معتدل او غوره. |
| {شُهَدَاءَ} | ګواهان، شاهدان. |
| {شَهِيدًا} | ګواه، شاهد. |
| {لَا تَغْلُوا} | مبالغه او تیری مه کوئ. |
| {عَلَى اللَّهِ} | پر الله، د الله په شأن کې. |
| {إِلَّا الْحَقّ} | پرته له حق څخه. |

**ژباړه**

او په همدې توګه موږ تاسې یو وسط (غوره) امت ګرځولي یاست چې شئ تاسې پر خلکو شاهدان او پېغمبر پرتاسې شاهد اوسي. (البقره ١٤٣) - ای د کتاب خاوندانو، تاسې مبالغه مه کوئ، په خپل دین کې او مه وایئ پر الله پرته له حق نه بل څه.... (النساء ١٧١)

**تفسیر**

**د آیتونو شرح او څېړنه**

له بیت المقدس نه د کعبې شریفې په لور د مسلمانانو د قبلې له بدلون وروسته الله تعالی خپل پیغمبرﷺ ته خبر ورکړ، یهود او نور منافقین به ډېر ژر دا آوازې خپرې کړي چې محمد او اصحاب یې هره ورځ له یو لوري نه بل لوري ته مخ اړوي او پر خپل دین ثابت نه دي. د دوی د قبلې د بدلون یوازینی لامل له اهل کتابو سره د دوی کینه ده، خو ته ای

محمده! دغو ناپوهانو ته ووایه چې ختیځ او لویدیځ ټول د الله دي. د الله تعالی چې هر چا ته خوښه شي هغه ته سمه لاره ورښيي. څه چې له دې آسماني ځواب نه څرګندیږي هغه دا دی چې د قبلې بدلون د الله تعالی له خوا پیغمبرﷺ او د هغه د امت لپاره یو ځانګړی فضیلت او غوره والی دی. ځکه کعبه شریفه د ځمکې پر سر هغه لومړنی خونه ده چې د الله تعالی د عبادت لپاره جوړه شوې ده. کعبه د اب الانبیاء (د پیغمبرانو پلار) ابراهیم خلیل الله قبله ده، چې اهل کتاب په دروغو ځانونه هغه ته منسوبوي. هر چاته چې الله تعالی د دې قبلې په لور د هغه د عبادت لارښوونه وکړه، هماغه کس په حقه سره د ابراهیم علیه السلام پیرو بلل کیږي. له دې مبارک آیت څخه وروسته الله تعالی مؤمنانو ته خطاب کوي او داسې فرمايي: ﴿وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا﴾ یعنی لکه څرنګه چې مو تاسې ته درنښت او لوی عزت درپه برخه کړ همدارنګه مو تاسې ته دا ستر مقام هم درکړ چې ﴿جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا﴾ موږ تاسې یو وسط (غوره) امت ګرځولي یاست. په عربي ژبه کې وسط په څو معناګانو راغلی دی لکه: د غوره، عدل، وسطیت، درمیانه او ښېګڼې په معنا.

په دې توګه د دې مبارک آیت تفسیر داسې دی، الله تعالی فرمايي: ما تاسې ترټولو غوره امت وګرځولئ، ما تاسې د عدل او انصاف امت وګرځولئ، ما تاسې منځنی(درمیانه) او د افراط او تفریط تر منځ امت وګرځولئ او دا چې ما تاسې خیرخوښوونکی امت وګرځولئ او د دغه وسطیت پر مبنا ستاسې کتاب، ستاسې عقاید او ستاسې د دین احکام په ځانګړي اهتمام او پاملرنې سره ساتل شوي دي چې په هغو کې د هیڅ ډول تحریف او لاس وهنې امکان نشته.

﴿لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا﴾ یو له هغو مهمو چارو څخه چې پر وسطیت باندې مرتبیږي دا دی چې اسلامی امت د الله تعالی په نزد درمیانه، د عدل، بلکې غوره او مختار امت دی، نو له دې امله پر نورو امتونو باندې د شاهد او ګواه په حیث پېژندل شوی دی ﴿لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ﴾

**شهداء:** د شهید او شاهد جمع ده او د حاضر او ګواه په معنا راځي.

د ″ **النَّاسِ**: څخه مراد د هغه تفسیر پر مبنا چې په روایاتو کې راغلی دی، پخواني امتونه دي، نو اسلامي امت به د شاهد او ګواه په توګه پر نورو امتونو ګواهي ورکوي چې

تفصيل به يې وروسته ذکر شي. د دې امت د عدالت او صداقت معيار د همدې لوست د لومړي مبارک آيت په وروستۍ جمله کې بيان شوی دی

﴿وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا﴾ يعني پيغمبرﷺ به پرتاسې شاهد اوسي. د الله تعالی تر ټولو غوره پيغمبرحضرت محمدﷺ به د خپل امت پرصداقت، عدالت او انصاف شهادت ورکړي.

﴿يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ﴾: د قرآن مجيد په آيتونو کې له اهل کتابوڅخه مراد يهود او نصارا دي، ځکه الله تعالی خپل آسماني کتابونه، چې له تورات او انجيل څخه عبارت دي، د قرآن کريم له نزول څخه مخکې دوی ته راليږلي دي. الله تعالی دوی په اهل کتابو سره ځکه ستايلي دي، تر څو دوی لږ څه فکر وکړي او د الله تعالی هغه نعمتونه، لکه د الله تعالی له لوري د رسولانو او کتابونو ورلېږل ورپه ياد شي او سمه او نېغه لاره غوره کړي.﴿لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ﴾ غُلُو د زيادت، مبالغې او له حد څخه د تېرېدلو په معنا ده. په دين کې غلو کول له دې څخه عبارت دي چې انسان خپل دين پر خپل ځان سخت او مشکل کړي او يا په دين کې داسې شيان ورزيات او د معتقداتو له جملې څخه وګرځوي کوم چې له دين څخه نه دي. له دې مبارک آيت څخه دا څرګندېږي چې د اسلامي امت پر خلاف يهودو او نصاراو په خپل دين کې د اعتدال او ميانه روۍ حد پرېښی دی او زيادت او يا تقصير ته يې مخه کړې ده چې يوه څرګنده نمونه او بېلګه يې د دې مبارک آيت په وروستۍ برخه کې بيانيږي: ﴿وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقّ...﴾ او تاسې پر الله پرته له حق نه بل څه مه وايئ. تاسې ولې د عيسی علېه السلام په حق کې چې الله تعالی د (کن فيکون) په کلمې سره د معجزې په بڼه پيدا کړی دی، له غُلُوّ ډېر عزت او احترام څخه کار اخلئ او هغه د عبوديت له درجې نه د الوهيت لوړ مقام ته رسوئ؟ دا کار په دين او ايمان کې زيادت بلل کيږي.

**د آيتونو لنډ مفهوم**

﴿وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا...﴾ دا مبارک آيت د (بقرې) د سورت د ۱۴۳ آيت يوه برخه ده. د دې آيت په دغه برخه کې دوو مهمو امورو ته اشاره شوې ده.

**لومړی** الله تعالی د خپل هغه ستر انعام يادونه کوي چې پر اسلامي امت يې کړی دی او داسې فرمايي، لکه څرنګه چې موږ تاسې ته د غورې قبلې يعني د ابراهيمي قبلې په لور

هدايت وکړ همدا راز موږ تاسې منځنۍ او با انصافه امت کړئ چې پر دې اساس موږ تاسې له ټولو امتونو څخه غوره امت وګرځولئ.

**دويم**: هغه پايله ده چې پر دغه عدالت او وسطيت بنا کيږي او هغه د نورو امتونو لپاره د وسط امت په حېث د اسلامي امت معيارګرځول او پر نورو امتونو د دې امت شاهد ګرځول دي، په دې معنا چې د قيامت په ورځ به د نورو امتونو د دعواګانو د رښتينولی او دروغولۍ په اړه به له اسلامي امت نه پوښتنه کيږي او هغوی ته به په الهي محکمه کې د رښتينو شاهدانو حيثيت ورکړل شي.

﴿يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ...﴾ دا مبارك آيت د (نساء) د سورت د ۱۷۱ آيت يوه برخه ده. دلته اهل کتابو ته، چې مراد ترې نصارا دي، خطاب شوی دی ترڅو هغوی په دين کې له زياتي غُلُوّ څخه لاس واخلي. دا په دې معنا چې په دين کې له تکلف، رهبانيت، واده نه کولو او پر ځان د حلالو نعمتونو له حرامولو څخه ډډه وکړي او دا چې دغه بدعتونه د دين برخه ونه ګڼي. همدارنګه له دوی څخه غوښتنه شوې ده چې د الله تعالی په اړه له خپل ځان نه هغه څه و نه وايي چې د هغه جل جلاله له شان سره سمون ونه لري او نه هم داسې عقايد رامنځته کړي چې په دين کې کوم اصل او اساس ونه لري، لکه دا چې له الله تعالی سره د هغه په ذات او يا صفاتو کې سيال او شريك ونيول شي او عيسی بن مريم عليه السلام چې د الله رسول دی، هغه ته د الوهيت لوړ مقام ورکړل شي.

دولسم لوست

**د تېر لوست پاتې برخه**

## په دين کې اعتدال (منځلاریتوب)

**په اسلام کې د اعتدال ورانگې**

د الله تعالى اراده پر دې وه چې د اسلامي امت ټول امور پر وسطيت او ميانه روی ولاړ وي. په داسې توگه چې د غوره والي دغه ځلاگانې په عقيده، ايمان، تفکر، سوچ، احساساتو، غرايزو، د اړيکو او ارتباطاتو په نظام، عباداتو، طاعاتو او لنډه دا چې د ژوند په ټولو امورو کې په څرگند ډول بربېښي.

**۱- په عقيده او ايمان کې منځلاریتوب**

اسلامي عقيده يوه داسې عقيده ده چې پر الله تعالى باندې د ايمان او باور، د هغه پر وحدت، له ټولو عيوبو او نيمگړتياوو نه د هغه په پاکوالي، يوازې د هغه د عبادت پر وړتيا، د الله تعالى پر ملايکو، پيغمبرانو، آسماني کتابونو، د آخرت پر ورځ، پر حساب او کتاب، جنت او دوزخ او الهي تقدير باندې د ايمان او باور پر لرلو ولاړه ده. دا عقيده له دې امله د توحيد، انصاف عقيده بلل کيږي چې د دې عقيدې خاوندان هيڅکله هم له الله تعالى سره شريك نه نيسي او نه هغه جل جلاله پر هغو صفاتو موصوفوي، چې د هغه له سپېڅلي ذات شان سره سمون نه لري. لکه څرنگه چې يهوديانو الله تعالى پر بې وزلى او تنگ لاسى موصوف کړی وو او د هغه په هکله به يې داسې ويل: ﴿إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ﴾ آل عمران – ۱۸۱ **ژباړه:** بې شکه الله تعالى بې وزلى (فقير) دی او موږ بډايان (غنيان) يو. نصاراوو به الله تعالى د بشر پر اوصافو لکه پلارولي او داسې نورو اوصافو موصوف کاوه او داسې به يې ويل: ﴿اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا﴾ البقرة –۱۱۶ **ژباړه:** الله تعالى (د خپل ځان لپاره) زوی نيولی دی. خو د اسلام سپېڅلي دين د الله تعالى د شان په اړه له ټولو اديانو ښه غوره، معتدله او معقوله عقيده د بشريت لپاره ډالۍ کړه. الله تعالى فرمايي: ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ اللَّهُ الصَّمَدُ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ﴾ الاخلاص- ۴-۱ **ژباړه:** ای محمده، ووايه الله يودی، الله بې نيازه دی، نه يې څوك زيږولی او نه له چا زيږېدلی دی او نه څوك د هغه لپاره سيال او برابرشته.

د اسلام سپېڅلي دين د ملایکو په اړه نه د یهودو په څېر دښمني اختیار کړې ده، لکه څرنګه چې قرآن کریم د هغوی په اړه خبر ورکوي: ﴿قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ﴾ [البقرة –۹۷]

**ژباړه:**ووایه ای محمده، څوك چې له جبرائیل سره دښمني لري او نه هم د مشرکینو په څېر ملایکې د الله تعالی لونې ګڼي ﴿وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِنَاثًا﴾ [الاسراء]۴۰ **ژباړه:** او(ستاسې رب) ملایکې د ځان لپاره د لورګانو په توګه نیولي دي. بلکې ملایکې د الله تعالی مطیع بندګان ګڼي:﴿بَلْ عِبَادٌ مُكْرَمُونَ ۞ لَا يَسْبِقُونَهُ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِأَمْرِهِ يَعْمَلُونَ﴾ [الأنبياء۲٦– ۲۷]

**ژباړه:** بلکې هغوی د الله تعالی عزتمند بنده ګان دي، د هغه له اجازې پرته خبره نه کوي او یوازې د هغه په امر کار ته وړاندې کیږي.د پیغمبرانو په هکله د دوی عقیده داسې ده چې پر ټولو باندې یو شان ایمان واجب ګڼي او د هغوی په درناوي کې یې منځنی او معقوله لاره اختیار کړې ده: ﴿لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِهِ﴾ [البقرة – ۲۸۵] **ژباړه:** موږ د الله تعالی د پیغمبرانو تر منځ توپیر نه کوو. داسې په سلګونو نور عقیدوي موارد شته دي چې د اسلامي امت او عقیدې د وسطیت څرګندونه کوي.

اسلامی عقیده داسې یوه عقیده ده چې د انسان د روح او جسم د ودې او پایښت لپاره یې زمینه برابره کړې ده او دواړو ته په ارزښت قایل ده. دا سپېڅلې عقیده داسې نه کوي چې انساني روح یوازې پر معنویاتو تقویه او بډای کړي او تر څنګ یې د ژوند مادیاتو ته په کوم اهمیت قایل نشي او د جسم د هلاکت لامل وګرځي، بالعکس داسې هم نه کوي چې یوازې مادیاتو ته مخه او معنویاتو ته شا کړي، بلکې دواړو اړخونو ته یې ځانګړې پاملرنه کړې ده.

## ۲- په سوچ کې منځلاریتوب

اسلام د تفکر، تدبر او سوچ په اړه په بشپړه توګه د عقل کارول نه ردوي او نه هم هغه خپلسری پرېږدي، هرشی په نظري او تجربوي علوموکې منحصر نه ګڼي او نه تجربه او ماده بې بنسټه بولي. اسلام د فکري جمود او ړوند تقلید پرخلاف دی او بې قیده او خپلسری حریت او آزادي نه مني. بلکې د فکر، سوچ او د علم او نظر اړخونو او ابعادو ته یې داسې اصول او ضوابط وضع کړي دي، که چېرې په سمه توګه پلي شي نو د دنیوي او اخروي ژوند د نېکمرغۍ لپاره به انسانان ښې پایلې تر لاسه کړي. قرآن مجید د عقل صفت او ستاینه داسې کوي: ﴿إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ [الرعد۴– ] **ژباړه:** بې

شکه په دې کې خامخا ډېرې نښې دي د هغو خلکو لپاره چې له عقل نه کار اخلي. په بل آيت کې فرمايي: ﴿كَذَلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾ [الروم– ٢٨ ] **ژباړه:** موږ په همدې توګه هغه قوم ته نښې بيانوو چې له عقل نه کار اخلي، خو د عقل د بې ځايه کارولو او الوتنو غندنه او ممانعت داسې کوي: ﴿وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ [البقرة: ١٦٩]**ژباړه:** او دا چې تاسې ووايئ پر الله هغه څه چې پرې نه پوهېږئ. په دې معنا چې بايد عقل له خپلو حدودو څخه تېرى ونه کړي او په هغو مسائلو کې چې د الهي ذات، ملائکو، آخرت او هغو غيبي امورو پورې تړاو لري او د عقل له حدود څخه بهر وي، نو په دې صورت کې عقل بايد په ټوله معنا نقل ته يعنې هغه څه ته چې د الله په کتاب او نبوي احاديثو کې څرګند شوي دي، غاړه کېږدي، تر څو د عقل او نقل تر منځ د وسطيت انډول وساتل شي.

**٣ - په احساساتو او غرايزو کې منځلاريتوب**

د اسلام په سپېڅلي دين کې د نفسي غوښتنو، احساساتو او غرايزو د لاسته راوړلو لپاره د ټول ژوند وقف کول جواز نه لري، خو د دې تر څنګ هغه احساسات او بشري غريزې، چې د انساني طبيعت مقتضا ده، له پام څخه نه غورځوي، د اسلام سپېڅلى دين نه د انساني غرايزو اهمال غواړي او نه هم په دې لړ کې انسانان خپلسرى ته پرېږدي، بلکې د ځانګړو قوانينو او مقرراتو په وضع کولو سره د هغو تهذيب او تاديب کوي تر څو د فساد، سرغړونې مخه ونيول شي. له دې امله د ژوندانه د تلې د يوې پلې په اړه داسې لارښوونه کوي: ﴿قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ الَّتِي أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ وَالطَّيِّبَاتِ مِنَ الرِّزْقِ﴾ [الأعراف–٣٢] **ژباړه:** ووايه اى محمده، چا حرام کړې دى زينت د الله هغه چې د خپلو بندګانو لپاره يې ايستلى دى او چا پاک او خوندور رزق حرام کړى دى. يعنې  هيڅوک نشي کولاى چې د الله تعالى نعمتونه او زينتونه پر تاسې حرام کړي. تاسې کولاى شئ واده وکړئ، حلال مال ترلاسه کړئ، تفريح او سياحت وکړئ او له زرګونو نورو الهي نعمتونو څخه ګټه پورته کړئ، خو د ژوندانه د تلې په بله پله کې داسې لارښونه کوي: ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾ [الانعام– ١٥١ ] **ژباړه:** او مه نږدې کېږئ فاحشو کارونو ته، هغه چې ښکاره دي او هغه چې پټ دي.﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ﴾ [البقرة – ١٨٨] **ژباړه:**او تاسې خپل مالونه په خپل مينځ کې په ناروا مه خورئ، نوتاسې ته هېڅکله هم د دې اجازه

نشته چې بدو کارونو او ناوړو اعمالو ته نژدې شئ یا دا چې د خلکو مالونه په ناحقه او ناروا سره وخورئ ځکه دا د غرایزو د طغیان په معنا ده په داسې حال کې چې اسلام طغیان نه خوښوي او نه هم د نعمتونو نه ګټې اخیستلو پر خلاف دی، بلکې د دې دواړو حالاتو ترمنځ یې منځنی او وسط حالت غوره کړی دی.

### ٤ – په نظم او نظام کې منځلاریتوب

اسلام په هغه ټولنه باور نه لري چې له نظام، حکومت، مقرراتو او قوانینو څخه خالي وي او نه هم ظالمانه او جابرانه نظامونه مني او دې ته هم اجازه نه ورکوي چې یو شمیر خلک نور انسانان خپل مریان وګرځوي او نه هم په بشري ټولنو کې د ځنګل د قانون نافذولو ته اجازه ورکوي.

همدارنګه دې ته اجازه نه ورکوي چې کومه کورنۍ مشر او مسؤول و نه لري او نه دېته جواز ورکوي چې د کورنۍ مشر(سړی) د ښځې کرامت او شخصیت تر پښو لاندې کړي. له دې امله قرآن کریم ټول مسلمانان د جماعت التزام او یووالي ته رابولي او داسې فرمايي: ﴿وَاعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ اللّهِ جَمِيعًا وَلاَ تَفَرَّقُواْ﴾ آل عمران۱۰۳] **ژباړه:** او تاسې ټول د الله په رسۍ منګولې ولګوئ او مه خواره کیږئ.

همدارنګه پیغمبرﷺ هم په دې اړه فرمايي: "آمُرُكُمْ بِخَمْسٍ اللَّهُ أَمَرَنِى بِهِنَّ بِالْجَمَاعَةِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ..."[١] یعنې زه تاسو ته پر هغو پنځو شیانو امر او نصیحت کوم چې ماته د الله تعالی له لوري پر هغو امر شوی دی، د هغو له جملې څخه د جماعت التزام او د مسلمانو مشرانو اطاعت او فرمانبرداري ده، خو له بل لوري رسول اللهﷺ په څرګنده توګه دا اعلانوي چې"لا طاعة لمخلوق فى معصية الخالق"[٢] (د الله په نافرمانی کې د مخلوق اطاعت جواز نه لري) یعنی اطاعت او پیروي په دې معنا نه ده چې مسلمان د دین او مقدساتو پر خلاف هر زور او ظلم قبول کړي، بلکې په دې چارو کې دې هم باید اعتدال وساتل شي او منځلاریتوب دې غوره کړای شي.

---

١ – سنن ترمذی، صحیح ابن خزیمة، مسند احمد.

٢ – سنن ترمذی، مسند احمد و الطبرانی و غیرهم.

### ٥ – په اړیکو کې منځلاریتوب

اسلام د مسلمانانو د خپلمنځي اړیکو او پیوندونو په سلسله کې او همدارنګه د مسلمانانو او غیر مسلمانو سره د اړیکو په هکله منځنۍلاره غوره کړې ده. نه د اړیکو لرلو مانع کیږي او نه هم پریږدي چې دا اړیکې د مسلمانانو د دین او دنیا په زیان پای ته ورسیږي، د بیلګې په توګه له غیر مسلمو سره د اړیکو لرلو په هکله داسې فرمايي: ﴿لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَارِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ﴾ [الممتحنة– ٨]

**ژباړه:** الله تاسې له دې څخه نه منع کوي چې له هغو خلکو سره د نیکۍ او عدل چلند وکړئ، چې هغوی د دین له امله له تاسې سره جنګ نه دی کړی او تاسې یې له خپلو کورونو څخه نه یاست ایستلي.

خو په وروستي آیت کې یې فرمایلي دي: ﴿إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُم مِّن دِيَارِكُمْ﴾ [الممتحنة– ٩ ] **ژباړه:** بې شکه منع کوي تاسې الله د هغو کسانو له دوستۍ څخه چې د دین له امله یې له تاسې سره جنګ کړی او تاسې یې له خپلو کورونو نه ایستلي يئ.

نو له دې امله مسلمان باید په هر ډول اړیکو کې میانه روي اختیار کړي.

### ٦ – په عباداتو کې منځلاریتوب

د اسلام همیشنی غږ دا دی چې: ﴿لاَ يُكَلِّفُ اللّهُ نَفْسًا إِلاَّ وُسْعَهَا﴾ [البقرة – ٢٨٦]

**ژباړه:** الله تعالی پر هیچا د هغه له توان څخه پورته بار نه ږدي. بناء اسلام له خپلو پیروانو څخه دا نه غواړي چې شپه او ورځ په عملي عباداتو مشغول شي، یا هر هغه څه چې لاس ته راوړي هغه ټول د الله په لاره کې ولګوي او نه د ځینو ادیانو په څیر ټول عبادتونه په ځو دعاګانو، اشعارو یا په اوونۍ کې یو ځل عبادت ځای ته په تللو کې منحصروي او نه یې د حلالې روزۍ له پیدا کولو څخه منع کوي او نه د دې اجازه ورکوي چې د دنیا پلټنه د عبادت د پرېښودو لامل شي. بلکې د تلې د دواړو پلو انډول برابر ساتي. د نبي کریمﷺ صحیح حدیث دی چې فرمایي: "إنَّ هذا الدِّين يُسْرٌ، ولنْ يُشادَّ الدِّينَ أحدٌ إلا غلَبَه"[1] دا دین

---

[1] – صحیح البخاری، کتاب الایمان، باب الدین یسر

آسانه دین دی، هیڅوك دې له دې دین سره مقابله نه کوي مګر دا چې دین به پرې غالب شي.

**یادونه:** له پورتني حدیث شریف څخه مراد دادی چې تاسې په نفلي عباداتوکې پر ځان له وس نه زیات فشار مه راوړئ، د فرایضو په ادا کولو کې هیڅ ډول سختی شتون نه لري.

**پر نورو امتونو د اسلامي امت د ګواهۍ څرنګوالی**

په حدیث شریف کې راغلي دي چې رسول اللهﷺ وفرمایل: نوح علیه السلام د قیامت په ورځ غوښتل کیږي او پوښتنه ورځنې کیږي آیا زما دعوت دې خپل قوم ته ورساوه؟ ځواب ورکوي، هو. د نوح علیه السلام قوم راغوښتل کیږي او پوښتنه ورځنې کیږي آیا تاسو ته یې تبلیغ کړی دی؟ قوم به یې وایي: موږ ته هیڅ کوم ویرووونکی نه دی راغلی او موږ ته هیڅا دعوت نه دی راکړی. نو بیا نوح علیه السلام ته ویل کیږي څوك به ستا لپاره شاهدي ووایي (پردې چې تا مسؤولیت اداء کړی دی) هغه وایي: محمد او د ده امت، وروسته د الله رسول دا آیت تلاوت کړي: ﴿وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا﴾.

**د اهل کتابو د مبالغې بیلګې**

لکه څرنګه چې وړاندې ذکر شو غُلُو له حد او پولې نه تیریدنې ته وايي. توپیر نه کوي که دا غُلُو د افراط په بڼه وي او که د تفریط په بڼه، د مثال په توګه نصاراوو د عیسی علیه السلام په احترام او درناوۍ کې افراط وکړ. کله هغه ته خدای وایي: ﴿إِنَّ اللّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ﴾ [المائدة– ۱۷ ]

یعنې: الله هماغه مسیح زوی د مریم دی او کله یې د الله زوی ګڼې او وایي: ﴿الْمَسِيحُ ابْنُ اللّهِ ﴾ یعنې مسیح د الله زوی دی او کله عیسی علیه السلام، د هغه مور مریم او خدای جل جلاله درې ګوني خدایان په نامه یادوي او وایي:﴿إِنَّ اللّهَ ثَالِثُ ثَلاَثَةٍ﴾ [ المائدة ۷۳ ] الله دریم د دریو دی. په دې ټولو ډولونو کې په دین اوعقیده کې د غلو او الحاد څخه پرته بل څه نشته، خو د تعجب خبره دا ده چې دوی سره له دې ټولو بیا هم د توحید دعوا کوي.

یهود د نصاراوو په مقابل کې د عیسی علیه السلام په بې حرمتۍ او بې عزتۍ کې غلو کوي. العیاذ بالله هغه ګمراه بولي آن تر دې چې په ډیر ویاړ د هغه د وژلو مدعي شول او

ويې ويل: ﴿إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ﴾ [النساء-۱۵۷] **ژباړه:** موږ مسيح، چې هغه عيسى ابن مريم دی، وواژه.

د يهودو يوه بله ډله د عزير عليه السلام په هکله داسې غلو وکړه، لکه څرنګه چې مسيحيانو د حضرت عيسى عليه السلام په هکله عقيده درلودله هغوی به داسې ويل: ﴿عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ﴾ [التوبة- ۳۰ ] **ژباړه:** عزير د الله زوی دی.

همدارنګه نصاراوو په خپل رهبانيت کې غلو وکړه او د هغه په اساس يې په غارونو او کليساوو کې ګوښه توب غوره کړ، نکاح يې په ځان حرامه کړه چې د دوی دې کړنو ته قرآن کريم داسې اشاره کوي: ﴿وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ﴾ [الحديد- ۲۷] **ژباړه:** رهبانيت او ګوښه والی يې د بدعت په توګه پيدا کړ په داسې حال کې چې موږ په هغوی نه و فرض کړې.

همدارنګه يهودو د حلالو څارويو په هکله غلو وکړه او د هغوی پاکې غوښې يې پر ځان حرامې کړې. قرآن کريم د دوی دا عمل ردوي او فرمايي: ﴿كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِبَنِي إِسْرَائِيلَ ﴾ [آل عمران ۹۳] ټول خوراکي شيان بنی اسرائيلو(يهودو) ته حلال وو، خو هغوی غلو وکړه او حلال شيان يې پر ځان حرام کړل. په پای کې قرآن کريم د دوی هغه غلو ته چې له کفارو سره د واقعي دوستۍ سرحد ته رسيدلې ده، داسې خبر ورکوي: ﴿تَرَى كَثِيرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ [المائدة – ۸] **ژباړه:**ډېر له دوی څخه وينې چې دوستي کوي له کافرانو سره. دا ډول غلو کول په اهل کتابو کې ډېره ده او اوس هم شته، نو ځکه قرآن کريم دوی د اسلام منځنۍ لارې ته را بولي او دوی په دين کې له غلو کولوڅخه منع کوي چې د ټولو په سر کې په وروستني پيغمبرﷺ باندې د دوی ايمان نه راوړل دي.

**فعاليت**

زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي او د ښوونکي په لارښوونه دې په دين کې د غلو او مبالغې د زيانونو په اړه له يو بل سره بحث او خبرې اترې وکړي

## د لوست ګټې او لارښوونې

پورتني مبارک آيتونه ډېرې ګټې لري چې ځينې يې په لاندې ډول دي:

۱. په اسلامي احکامو کې د نسخې ثبوت او جواز، لکه څرنګه چې مسلمانانو د الله تعالی په امر له بیت المقدس نه خپله قبله د کعبې شریفې په لور بدله کړه چې دې ډول نسخې ته د بدل نسخه ویل کېږي.
۲. پر مسلمانانو تور لګول او د هغوی پر ضد پروپاګند د کفارو همېشنی دنده او عادت دی، نو مسلمانان باید هوښیار اوسي تر څو د کفارو د بریدونو او دسیسو ښکار نشي.
۳. پر نورو امتونو باندې د اسلامي امت د فضلیت ثبوت، ځکه دا امت د بشپړ وسطیت له مخې یو غوره امت دی.
٤. پر نورو امتونو باندې د قیامت پر ورځ د محمدﷺ د امت د شاهدی اثبات.
٥. د خپل امت پر عدالت او صداقت باندې د رسول علیه السلام، شهادت او ګواهي.
٦. په دین کې د زیادت او غلو کولو حرمت، ځکه دا کار په دین کې د بدعت اوګمراهۍ د رامنځته کېدو لامل ګرځي.
٧. د شرعي علم او اساس پرته د الله تعالی په شان کې د څه ویلو حرمت.
٨. په عقایدو، عباداتو او کړنو کې د اهل کتابو د ګمراهۍ، مبالغې او غلو بیان.

## پوښتنې

۱) لاندیني کلمات وژباړئ.

{جَعَلْنَاكُمْ}{أُمَّةً} {شُهَدَاءَ} {لَا تَغْلُوا} {عَلَى اللَّهِ} {اِ لَّا الْحَقّ}

۲) د ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا﴾ مبارك آیت له مخکیني آیت سره، چې د قبلې د بدلون په اړه دی، څه تړاو لري؟

۳) وسط په عربي ژبه کې په څه معنا دی؟

٤) اسلامي امت ته د نورو امتونو په منځ کې څه حیثیت ورپه برخه شوی دی؟

٥) څرنګه اسلامي امت پر نورو امتونو شهادت ورکوي؟

٦) له اهل کتابو څخه مراد کوم کسان دي؟

٧) د اهل کتابو د غلو درې نمونې بیانې کړئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په لوست کې د ورکړل شویو معلوماتو پر بنسټ د وسطیت د مختلفو جوانبو په هکله یوه مقاله ولیکي چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.

# گټوره سوداګري

الله تعالی فرمایي:﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ * تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ۞ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ۞ وَأُخْرَى تُحِبُّونَهَا نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ﴾.[الصف: ۱۰-۱۳]

**د کلمو معنا**

| | |
|---|---|
| هَلْ أَدُلُّكُمْ: | آیا وښایم تاسي ته؟ |
| تِجَارَةٍ: | تجارت. |
| تُنجِيكُم: | چې تاسي وژغوري. |
| عَذَاب أَلِيم: | درد ناک عذاب. |
| مَسَاكِنَ طَيِّبَةً: | د اوسېدو غوره او ښه ځایونه. |
| الْفَوْزُ الْعَظِيمُ: | لوی او ستر بری. |

**ژباړه**

ای مؤمنانو، آیا زه وښایم تاسي ته هغه تجارت چې تاسي له دردناک عذاب نه وژغوري؟ پر الله او د هغه پر رسول ایمان راوړئ او د الله په لاره کې پر خپلو مالونو او خپلو ځانونو سره جهاد وکړئ، دا ستاسو لپاره غوره دی که تاسي پوهیږئ.

الله پاک به ستاسي ګناهونه وبښي او تاسي به هغو باغونو ته داخل کړي چې د هغو لاندي به ویالي بهیږي او په باغونو کې به ډېر غوره کورونه درکړي. دا دی ستر بریالیتوب. او بل څه چې تاسي یې ډېرخوښوئ د الله مرسته (کومک) او ډېر نږدې بری دی او مؤمنانو ته (ای محمده) د دې زیری ورکړه.

**تفسیر**

**د آیتونو شرح او څیړنه**

په پورتنیو مبارکو آیتونو کې الله تعالی مؤمنان د غوره کارونو د تر سره کولو په لورهڅوي. په اصلي ډانګه کې تصرف او د ګټې لاس ته راوړلو لپاره د هغې په کار اچولو ته تجارت ویل کیږي، دلته په دې مبارك آیت کې د تجارت څخه مراد ایمان او جهاد دی چې د نوموړي تجارت د تفسیر او توضیح لپاره بیان شوی دی.

د﴿هَلْ أَدُلُّكُمْ﴾ په جمله کې استفهام د دې تجارت په لور د مؤمنانو د ترغیب او تشویق لپاره دی. همدارنګه د ﴿تِجَارَةٍ﴾ د کلمې راوړل په نکره صیغې سره د دې تجارت اهمیت، ارزښت او ستر مقام را په ګوته کوي.

د﴿تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾ مبارکه جمله یو الزامي امر دی چې د خبر په بڼه ذکر شوی دی او معنا یې داسې ده چې: ای مؤمنانو، تاسې په ایمان لرلوکې پر الله تعالی او د هغه پر پیغمبر او د هغه په لاره کې د جهاد لپاره ټینګ او ثابت قدم اوسئ چې دا کار ستاسې لپاره ډیر غوره دی که چیرې تاسې پوهیږئ.

په دې مبارك آیت کې د مالي جهاد یادونه پر نفسی جهاد مخکې شوې ده او دا ځکه چې د تجارت موضوع دا ایجابوي، یعنی په تجارت کې مالونه له یو لاس نه بل لاس ته ورځي او د جهاد لپاره مال او ډانګه ضروري ده او د مالونو په واسطه وسله او د جهاد نورې اړتیاوې برابریږي، لکه څرنګه چې د اسلام خوږ پیغمبرﷺ فرمایلي دي: (من جهز غازیاً فقد غزا) یعنی: چا چې کوم مجاهد د جهاد لپاره (په وسله او نورو لوازمو) سمبال کړ، په حقیقت کې سمبالوونکي په خپله جهاد کړی دی.

خو په: ﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾ [التوبة: ۱۱۱]مبارك آیت کې چې د عرض او طلب مقام دی او د دغه پلورلو او پیرودلو بیه د الله جنت دی، نو له دې امله د دې ستر قیمت پر وړاندې د انسان تر ټولو قیمتي او ارزښتناکه ډانګه چې د هغه نفس دی له مال څخه وړاندې ذکر شوی دی.

په دې مبارك آیت کې الله تعالی د مجاهدینو او شهیدانو د ګناهونو د ښښنې او جنت ته د دوې د ننوتلو تر څنګ له دوی سره د ښایسته او هوسا کورونو او ماڼیو ژمنه هم کړې ده. ځینو علماوو او مفسرینو د ﴿مَسَاكِنَ طَيِّبَةً﴾ یعني د مجاهدینو لپاره د ښایسته او هوسا

کورونو د یادولو مناسبت داسې څرګند کړی دی. چې مجاهدین په دنیا کې خپل کلي او کور د الله په لاره کې د جهاد لپاره پرېږدي او له خپلو کورونو څخه د جهاد لپاره لرې ځي او هر ډول ستونزې زغمي، نو الله تعالی ورته د هغه په بدل کې د جنت د ښایسته ماڼیو او هوسا استوګنې زیری ورکوي.

**د مبارکو آیتونو لنډ مفهوم**

په مخکینو آیتونو کې څرګنده شوه چې مشرکانو غوښتل تر څو د اسلام ځلانده ډیوه مړه کړي نو ځکه الله تعالی مؤمنانو ته د دښمنانو پر وړاندې د جهاد امر وکړ او دوی یې د الله تعالی په لار کې ایثار، سرښندنې او پر نفس او مال جهاد کولو ته وهڅول.

الله تعالی د مؤمنانو د هغې پوښتنې په ځواب کې چې له پیغمبرﷺ څخه یې وکړه چې الله تعالی په کومو کړنو او اعمالو ډېر زیات خوشالیږي ترڅو یې دوی ترسره کړي. دوی ته داسې خطاب وکړ: ای هغو کسانو چې پر الله او د هغه په رسول ایمان او باور لرئ! آیا تاسې ته د داسې تجارت او سوداګرۍ لارښوونه ونه کړم چې تاسې په دنیا او آخرت کې له دردناك عذاب څخه وژغوري؟ بیا وروسته مبارك آیت ځواب ورکوي چې په دې تجارت کې اساسی پانګه دا ده چې: ﴿تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ﴾ په الله او پیغمبر یې ایمان راوړئ او د الله په لاره کې په خپل مال او نفس سره جهاد وکړئ چې دا تجارت ستاسو لپاره تر هرڅه غوره دی. که چیرې په ګټه او فایده یې پوهیږئ. بیا الله تعالی د دې تجارت ګټه او فایده په خپله بیان کړې ده چې ﴿يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ........﴾ د ګناهونو له ببښنې او د ابدي جنت باغونو ته له ننوتنې څخه عبارت ده چې د اوبو ویالې په هغه کې جاري دي او د هغه په ښایسته ماڼیو کې به د تل لپاره استوګن شي چې دا ډېر ستر بریالیتوب دی.

بیا الله تعالی مؤمنو مجاهدو ته یوه بله ګټه هم ور په برخه کړې ده چې دوی یې خوښوي او ډېر پرې خوشالیږي، هغه له سوبې، مرستې او پر دښمنانو د برلاسۍ او برې څخه عبارت ده؛﴿وَأُخْرَى تُحِبُّونَهَا نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ﴾ مراد له دې نږدې سوبې او فتحې څخه د مکې او د هغې د شاوخوا سیمو فتح کېدل او د اسلام په سپېڅلي دین کې د خلکو داخلیدل دي چې د الله تعالی له ژمنې سره سم یې په ډېره لنډه موده کې د عمل جامه واغوستله.

مفسرین وایي دا مبارك آیت د قرآن کریم له معجزو څخه دی چې له غیب څخه یې د فتحې خبر ورکړ او د زیري سره سم د پیغمبرﷺ په ژوندانه او ډېره لنډه موده کې مکه او نور فتوحات د رسول اللهﷺ او مسلمانانو په برخه شول. له عبدالله بن عباسرضي الله عنه څخه روایت دی چې فرمایي مراد له دې فتحې او الهي مرستې څخه د فارس او روم فتحه ده.

**په قرآن کریم کې د جهاد مفهوم**

د جهاد کلمه د اسلام له نظره یوه شامله او هر اړخیزه کلمه ده چې د هلو ځلو، کوښښونو او ستونزو ټول ډولونه په ځان کې رانغاړي؛ د الله په لاره کې جهادکول د جهاد ټولو ډولونه، لکه له نفس سره جهاد، د دښمنانو او د شر او فساد پر وړاندې جهاد پکې شامل دی. په دې ټولیز او هر اړخیز مفهوم سره په ټولنه کې د عامه افکارو د اصلاح لپاره ټولې ژبنۍ او قلمي هلې ځلې یو ډول جهاد بلل کیږي. همدارنګه د یوه ظالم او جابر نظام د تغیر لپاره مبارزه او هڅه او هاند، چې پر ځای یې د عدل او انصاف پر بنسټ ولاړ یو نوی نظام رامنځته شي، د اسلام له نظره یو ډول جهاد ګڼل کیږي. همدارنګه له حق، عدالت او انساني لوړو ارزښتونو څخه د دفاع لپاره د مال او پانګې لګول، ستونزې او کړاوونه زغمل هم یو ډول جهاد دی.

په اسلام کې جهاد د(فی سبیل الله) قید سره مشروعیت پیدا کوي او د جهاد د مفهوم لازم او نه بېلدونکی شرط دی، چې د دین حاکمولو لپاره ترسره کیږي، د ټول علماوو په اتفاق سره تر ټولو غوره او ستر جهاد په ځان او نفس سره جهاد دی چې د ستونزو او سختیو د ګاللو مستلزم دی او د الله په لار کې د شهادت د لوړ مقام لامل ګرځي.

له بله پلوه معلومه خبره ده چې اسلام جنګ نه خوښوي او نه ځوك ورته هڅوي، خوجهاد د الهي سترو موخو او د بشري ژوندانه د ارزښتونو د ترلاسه کولو لپاره فرض کړای شوی دی او په ځینو وختونو کې یې اړین امر بللی دی. ځکه اسلام د الله غوره دین دی، څو انسانان د کفر او شرك له تیارو او هر ډول اسارت او غلامۍ نه وژغوري او د یو الله د بندګۍ او عبادت لارې ته یې لارښوونه وکړي. د ځمکې پر مخ داسې قوتونه شتون لري چې د دغې الهي کړنلارې او پیغام پر وړاندې خنډ جوړیږي او د مخالفت او جګړې لاره غوره کوي. نو کله که اسلام او پیروان یې په داسې حالت کې واقع شي چې پرته له جنګ او مقابلې نه ورته بله لاره پاتې نشي، نوپه داسې حال کې اسلام مؤمنانو ته امر کوي. څو په پوره ځواك او میړانې سره د دښمنانو پر وړاندې ودریږي او د خپلو ځانونو او مالونو په لګولو سره د الله په لاره کې جهاد وکړي؛ ځکه د

جهاد فریضه سره له ټولو انواعو یې پر الله تعالی د ایمان او توکل  وروسته د تاریخ په اوږدو کې له اسلام نه د دفاع تر ټولوغوره وسیله ده.
په داسې حال کې مسلمانان د الله په لاره کې جهاد کوي؛ چې دا جهاد یې باید نه د نفسي غوښتنو لپاره، نه د قوم، توکم، رنګ، ژبې، بشري شعارونو،ځمکنۍ پراختیا، نړۍ نیونې او د قدرت او دبدبې غوښتلو لپاره او نه هم د غرایزو د بشپړولو او مال او شتمنۍ د لاس ته راوړلو لپاره وي.
جهاد په اسلام کې یوازې د (الله په لار کې) او د الله د دین د سرلوړئ  لپاره روا شوی دی. لکه څرنګه چې قرآن کریم فرمایې: ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لاَ تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلّهِ﴾ [الانفال/۳۹]
**ژباړه:** اوجنګ وکړئ تاسې له هغوی (کفارو) سره، ترڅو فتنه او فساد له منځه ولاړ شي او یوازې د الله دین حاکم شي.
همدارنګه پیغمبرﷺ فرمایلي دي: «من قاتل لتكون كلمة الله هي العليا فهو في سبيل الله»[1]
یعنی: څوک چې د الله په لاره کې جنګیږي ترڅو د الله کلمه یا دین حاکم او برلاسی شي نو دا کس د الله په لارکې په جهاد بوخت دی.
 په اسلام کې جهاد  زیات شروط،آداب او التزامات لري چې پرته د هغو له پابندۍ او مراعاتولو نشو کولای د جهاد نوم پرې کیږدو. د جهاد آداب، احکام او شروط د اسلامي فقهې په کتابونو کې په تفصیل سره څرګند او څیړل شوي دي چې د هر اړخیزو معلوماتو د لاس ته راوړلو لپاره کولای شو هغو ته مراجعه وکړو.

**فعالیت**
زده کوونکې دې د ښوونکې په لارښوونه په اسلام کې د جهاد د مفهوم په اړه او د جهاد او نورو مذهبي او بشري پرمختګونو لپاره د جګړو ترمنځ توپیر او د نظر څرګندونه وکړي.

## د لوست ګټې او لارښوونې

❖ په مبارک آیت او  همدارنګه نبوي احادیثو کې په مال او نفس سره د الله په لاره کې جهاد کول تر ټولو غوره عمل  او ډېر زیات ګټور تجارت ګڼل شوی دی.
❖ غوره او ستر جهاد په ځان او نفس سره دی.
❖ پر الله ﷻ او پیغمبرﷺ باندې د ایمان لرلو او د الله په لاره کې د جهاد ثمره او پایله، د ګناهونو  ښښنه، جنت ته داخلیدل او د الهي تلپاتې نعمتونو څخه ګټه اخیستنه ده.

[1] – صحيح البخارى، كتاب الجهاد، باب من قاتل لتكون كلمة الله هى العليا.

❖ په مبارك آيت كې پيغمبرﷺ او مؤمنانو ته د الله تعالی د ملاتړ او پر دښمنانو د هغوی د سوبې او بري زيری دی چې دا الهي زيری په ډېره لنډه موده كې د مكې او نورو فتحو په بڼه كې څرګند شو او د عمل جامه يې واغوستله.

❖ د جهاد كلمه په اسلام كې هر اړخيز مفهوم لري چې د مثبتو تغيراتو او انساني ښيګڼو لپاره ټولې هلې ځلې او منډې ترړې په هغې كې نغښتې دي.

❖ جهاد د اسلام له نظره له ټولو شخړو اوجنګونو سره، چې د بشري ټولنو په منځ كې په مختلفو نومونو او شعارونو، لكه د قوم، توكم، رنګ، ژبې،ځمكنۍ پراختيا، نړۍ نيونې او د قدرت او دبدبې غوښتلو لپاره په لار اچول كيږي، ټوليز او بنسټيز توپير لري.

❖ جهاد په اسلام كې يوازې د (الله په لار)، د الله د دين د لوړتيا، له مرييتوب نه د انسانانو د خلاصون او د ځمكې پر مخ له مظلومانو او بيوزلانو څخه د دفاع لپاره روا شوی دی.

❖ په جهاد كې د بيګناه خلكو وژل جواز نه لري. كه هغوی ښځې وي يا ماشومان، بوډاګان وي يا كمزوري خلك او كه ښاروي وي يا نور ساكښان. همدارنګه د عبادتځايونو د علمي او مدني ودانيو ړنګول او د ميوه لرونكو ونو، كښتونو او نورو انساني محصولاتو له منځه وړل حرام دي.

## پوښتنې

۱ـ لاندې كلمې شرح كړئ:

{هَلْ أَدُلُّكُمْ} { عَلَى تِجَارَةٍ} {تُنْجِيكُمْ}{عَذَابٍ أَلِيمٍ}{ مَسَاكِنَ طَيِّبَةً}.

۲ـ مبارك آيت د مؤمنانو لپاره څه شی تر ټولو غوره او ګټور تجارت بللی دی؟ په خپل ځواب كې په قرآني آيت استشهاد وكړئ.

۳ـ په مبارك آيت كې په مال سره جهاد كول د بالنفس څخه مخكې ذكر شوی دی، دليل يې څرګندكړئ.

۴ـ ددې الهي وينا ﴿وَأُخْرَى تُحِبُّونَهَا نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ﴾ مراد او اعجازي وجه په لنډه توګه شرح كړئ.

۵ـ د جهاد د كلمې مفهوم څرګند كړئ او د اسلامي جهاد توپير له نورو جنګونو سره روښانه كړئ.

## كورنۍ دنده

د جګړې په ډګر كې د مجاهد لپاره د جهاد د آدابو او اسلامي لارښوونو په هكله يوه مقاله وليكئ چې له دوو مخونو څخه كمه نه وي.

# د ديني زده کړې ارزښت

الله فرمايي﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنفِرُواْ كَآفَّةً فَلَوْلاَ نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُواْ فِي الدِّينِ وَلِيُنذِرُواْ قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُواْ إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ التوبة/١٢٢.

### د کلمو معنا

لِيَنفِرُواْ كَآفَّةً: ټرڅو ټول د جهاد لپاره ووځي.

طَآئِفَةٌ: ټاکلې او معينه ډله.

لِّيَتَفَقَّهُواْ فِي الدِّينِ: ترڅو په دين کې پوهه تر لاسه کړي.

لِيُنذِرُواْ قَوْمَهُمْ: خو خپل قوم(ټبر) د الله له عذابه ووېروي.

لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ: ښايي هغوی ځانونه وژغوري.

### ژباړه

له مؤمنانو سره نه ښايي چې له يوې مخې(جهاد ته) ووځي. ولې له هرې ډلې څخه ټاکلي خلک ونه وتل څو (پاتې خلک) په دين کې پوهه ترلاسه کړي او کله چې(وتلي خلک) د خپل قوم په لوري راوګرځيږي هغوی هم ترې خبر کړي، ترڅو هغوی هم ځانونه (له بديو) وژغوري.

### د مبارک آيت د نزول سبب

مفسرينو د دې مبارک آيت د نازلېدو په هکله ويلي دي: کله چې قرآن کريم د تبوک د غزا له راستنيدو وروسته د منافقانو ناوړه نيتونه او عيبونه څرګند کړل او د دوی مخالفت او رسوايي يې په دې ستونزمنه غزا کې ښکاره کړه. مسلمانانو ژمنه وکړه چې له دې وروسته به له هيڅ سريې (يا جهادي ډلې) او غزوې څخه مخالفت نه کوي، نو له تبوک نه د نبی کريمﷺ له راستنيدو وروسته هغه وغوښتل چې ځينې سريې يا جهادي ډلې نورو سيمو ته ولېږي. هماغه و چې مسلمانانو غوښتل ټول په يو ځل حرکت وکړي، نو د دوی د دې کار له امله  دا مبارک آيت نازل شو او دوی ته يې حکم وکړ چې مؤمنانو ته مناسبه نه ده ټول په يو ځلې جهاد ته ووځي او پيغمبرﷺ په مدينه منوره کې يوازې

پریږدي، بلکې یوازې هغه مهال چې پیغمبرﷺ د نفیرعام اعلان وکړي، بیا پر دوی لازمه ده چې ټول د جهاد لپاره چمتو شي.

**تفسیر**

**د آیت شرح او څېړنه**

په مبارك آیت کې د ﴿فَلَوْلاَ﴾ کلمه د تشویق او ترغیب لپاره ده؛ یعنی د مؤمنانو لپاره غوره ده چې کله د پیغمبرﷺ له خوا عام جنګ نه وي اعلان شوې او یا ټول خلك نه وي راغوښتل شوي، نومسلمانان دې ټول په یو ځل جهاد ته نه ځي؛ بلکې په دوو ډلو دې وویشل شي. له هر قوم او قبیلې څخه دې یوه ټاکلې ډله د جهاد لپاره ووځي او بله ډله دې له پیغمبرﷺ سره پاتې شي او د پیغمبرﷺ څخه دې د دین حکمونه او د شریعت لارښوونې زده کړي څو خپلې زده کړې د راستنیدو څخه وروسته مجاهدینو ته ور وښيي، او دا د جمهورو مفسرینو رأیه ده، نو پردې اساس له ﴿لِّيَتَفَقَّهُواْ.... وَلِيُنذِرُواْ﴾ څخه مراده ډله هغه ډله ده، چې د پیغمبرﷺ سره پاتې وه او نصیحت منونکې ډله ﴿لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ د مجاهدینو ډله ده. خو د مفسرینو بله ډله د دین تعلیم کوونکې ډلې څخه د مجاهدینو ډله مراد وي چې په خپل جهادي خوځښت سره د علم د خاوندانو برى، سوبه او مرسته د کافرانو او دښمنانو پر وړاندې په عملي بڼه ګوري. په ځانګړې توګه کله چې په جهادي سفر کې په خپله پیغمبرﷺ د جهاد لپاره وتلی وي او په دې توګه د اسلام حقیقت او د الله د خوښ کړي دین غوره والی او د سرکښانو او مشرکانو د پایلو په هکله چې د مسلمانانو په واسطه د الله عذاب دوی ته رسیږي، وروسته له راستنیدو یې چې څه زده کړي وي هغه خپل قوم ته ورښيي او د کافرانو له برخلیك څخه یې ویروي.

د دې نظریې علما په دې آند دي چې د اسلام پر دین سمه پوهه د تحرك پر بنسټ ولاړه ده، نو پردې اساس هغه کسان د دې دین حقیقت او مقصدونه په ښه توګه پیژندلی شي چې د هغه د لاس ته راوړلو لپاره حرکت کوي او د هغه د لارښوونو او احکامو د پلي کیدو په خاطر د ځمکې پر مخ هلې ځلې کوي، نه دا چې د کتابونو او پاڼو(اوراقو) سره په یوه ګوښه کې له خلکو جلا ناسته غوره کړي؛ ځکه اسلامي فقه د اسلام له تحرك او خپرېدلو نه رامنځته شوې ده. د دین په لاره کې حرکت او د بشري ټولنو په ژوند کې د هغه عملي تطبیق فقه رامنځ ته کړې ده او هغې ته یې پراختیا ورکړې ده.

**د آیت لنډ مفهوم**

الله تعالی په دې مبارک آیت کې وفرمایل که د جهاد لپاره عمومي اعلان نه وي شوی، مناسبه نه ده چې ټول مسلمانان د جهاد لپاره ووځي؛ بلکې په دوو ډلو دې وویشل شي. یوه ډله دې د جنګ ډګر ته ولاړه شي او بله ډله دې د دین د علم زده کړې او د دنیا ګټورو علومو ته مخه کړي ترڅو یو او بل ته خپلې عملي تجربې ور زده کړي چې په دې توګه مسلمانان وکولای شي په دلیل او حجت سره او هم په توره او لیندۍ سره له دین څخه د دفاع ترمنځ یووالی راولي.

**په اسلام کې د دیني زده کړې ارزښت**

قرآن کریم په دې مبارک آیت کې د الله په لار کې د جهاد د فریضې او د علم حاصلولو ترمنځ یوه موازنه رامنځته کړې ده، ځکه که چیرې مسلمانان په جهاد مشغول شي، شریعت به په ټپه ودریږي. او که مسلمانان د علم حاصلولو په لټه کې شي، دښمنان به په اسلامي ملت برلاسي شي. په دې توګه الله تعالی په خپل بشپړ حکمت او مشیت سره د اسلام ساتنه د مجاهدینو او د شریعت ساتنه د علماوو او زده کوونکو په غاړه ایښې ده. قرآن کریم د علماوو د شان د ارزښت په هکله د حصر او ټینګار په صیغې سره له الله نه ویره د علماوو ځانګړتیا ګڼلې ده، او داسې فرمایي: ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ [فاطر/۲۸]. **ژباړه:** بېشکه د الله په بندګانو کې یوازې علماء او پوهان له هغه نه وېرېږي.

الله تعالی علماء د ځمکې په مخ خپل خلفا او پر خپلو بندګانو دلیل او برهان ګرځولي دي او دوی یې د انبیاوو ورثه ټاکلي او د دوی شهادت او ګواهي یې د خپل شهادت او د پرښتو له شهادت سره یو ځای کړې ده، داسې فرمایي: ﴿شَهِدَ اللّهُ أَنَّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ وَالْمَلاَئِكَةُ وَأُوْلُواْ الْعِلْمِ﴾ [آل عمران/۱۸]. **ژباړه:** شاهدي ویلې ده الله چې پرته له هغه بل هېڅ معبود نشته. او ملایکو او د علم خښتنانو هم په همدې شاهدي ورکړې.

قرآن کریم د کافرانو د خراب حالت او بدو پایلو له بیانولو وروسته، د مؤمنانو او له الله نه ویریدونکو علماوو مقام او رتبه، چې د الله په نزد ډیره لوړه او الله ته ډیر نږدې ده، داسې ښودلې ده: ﴿أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاء اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُو رَحْمَةَ رَبِّهِ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُوْلُوا الْأَلْبَابِ﴾ [الزمر/۹]. **ژباړه:** آیا هغه څوک چې غاړه یې ایښې، د شپې په اوږدو کې په سجده او ولاړه له آخرت نه په ډار او د خپل رب د مهربانیو هیله من وي؟ (او هغه سره برابر دي چې هېڅ پروا نه ساتي) ای

محمده، ووايه آيا هغه كسان چې پو هېږي له هغو كسانو سره چې نه پو هېږي برابر دي؟ بې شكه چې يوازې د عقل څښتنان پند اخلي.

په مبارك ايت كې د ﴿لِّيَتَفَقَّهُواْ﴾ جمله ژوره پوهه، استنباط(د احكامو را ايستل د قرآن او سنت نه) او د علم او پوهې په تر لاسه كولو كې ځيرنه افاده كوي.

مفسرينو په ﴿وَمَن يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا﴾ [البقره/۲۶۹]. **ژباړه:** چاته چې پوهه وركړاى شوه نو يقينا لوى خير ورته وركړاى شو. مبارك آيت كې حكمت په فقهې او پوهې سره تفسير كړى دى. د علم او پوهې حاصلول د (فقهې او حكمت) په مفهوم په اسلامى شريعت كې ډېره لوړه مرتبه لري. نبى كريمﷺ په يوه صحيح حديث كې فرمايلي دي: "مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ"[1] يعنى: چاته چې الله د خير اراده وكړي، نو ده ته په دين كې پوهه ورپه برخه كوي.

پيغمبر عبد الله بن عباس ته د دين سمې زده كړې اوتاويل په هكله داسې دعا وكړه: «اللَّهُمَّ، فَقِّهْهُ فِي الدِّينِ، وَعَلِّمْهُ التَّأْوِيلَ»[2] يعنى: اى الله هغه(عبدالله بن عباس) ته په دين كې پوهه وركړې او تفسير او تأويل ور زده كړې.

د پيغمبرﷺ د همدې دعا په بركت حضرت عبدالله بن عباسؓ د صحابه وو له ډېرو لويو مفسرينو او فقهاوو څخه شو. او د (ترجمان القرآن) او فقيه او يا (د اسلامى امت حبر) په نامه ونومول شو او تر قيامته پورې د مسلمانانو د دعا او ستاينې وړ گرځيدلى دى.

په دې توگه د(فقه، فقيه، تفقه) كلمې د زده كړې، سمې او ژورې پوهې او ځيركتيا او حقيقت او صواب ته د رسيدنې معنا افاده كوي. د گڼورو علومو زده كړه او بل ته د هغو ښودنه په ځانگړې توگه د ديني علومو زده كړه او په هغو كې تبحر د هغو انساني اړتياوو له جملې دي چې پيغمبرﷺ په گڼو احاديثو كې پرې زيات ټينگار كړى دى او په دين كې يې پوهه او ځيركتيا د نفلي عباداتو څخه غوره او لوړه را په گوته كړې ده.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

❖ په دې مبارك آيت كې د علم حاصلولو ارزښت او غوره والى د كفايي جهاد له ارزښت او غوره والي سره برابر ټاكل شوى په دې شرط چې د علم زده كړه او پوهه په خالص نيت سره وي.

❖ له دې مبارك آيت څخه دا خرگنديږي، لكه څومره چې اسلامي امت جهاد ته اړتيا لري په هماغه اندازه علم، پوهې، علماوو او پوهانو ته هم اړتيا لري.

---

[1] المعجم الكبير للطبراني.

❖ د اسلام د دفاع لپاره علم او جهاد دوه مهمې وسيلې بلل شوې دي؛ ځکه علماء په دليل او حجت سره د الله د دين له حقانيت څخه دفاع کوي او مجاهدين په توره د الهي دين له حدودو څخه ساتنه کوي.

❖ د علم او پوهې رښتينى معيار دا دى چې ښښتن يې د نورو په پرتله له الله نه زيات ووېرېږي او د الهي احکامو پابند وي؛ ځکه علماء او د پوهې خاوندان د نورو په پرتله د الله تعالى د قدرتونو په نښو او نښانو ډېر ژر پوهېږي او لويي يې په کايناتو کې ګوري.

❖ په دين پوهيدنه د علم او پوهې د تر ټولو لوړې درجې افاده کوي؛ ځکه«تفقه» د علم، ژورې پوهې، استنباط او اجتهاد رامنځ ته کوونکى دى. له دې امله د «فقهې او فقيه» مرتبه په اسلامي شريعت کې ډېره لوړه ده.

## پوښتنې

۱ـ دلاندينيو کلمو او عبارتونو معنا څرګنده کړئ:

{لِيَنْفِرُوا كَافَّةً } {طَائِفَةٌ} {لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ} {لِيُنْذِرُوا قَوْمَهُم} {عَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ}.

۲ـ ددې مبارک آيت﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنفِرُواْ كَآفَّةً﴾ د نازليدو سبب په لنډ ډول بيان کړئ.

۳ـ د﴿لِيَتفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾ څخه کومه ډله کسان مراد دي؟ د علماوو او مفسرينو نظريې په دې هکله څرګندې کړئ.

۴ـ د﴿لِيَتَفَقَّهُوا﴾ جمله د علم او پوهې په اړوند څه مفهوم افاده کوي؟ په اسلامي شريعت کې د فقه، فقيه او حکمت د دلالتونو په هکله د آيتونو او حديثونو په رڼا کې توضيحات ورکړئ.

۵ـ د نبى کريمﷺ دعا د عبدالله بن عباس﷛ لپاره څه وه؟ او د هغه د دعا پايله په دې قدرمن صحابى کې څنګه رامنځ ته شوه ؟شرح يې کړئ.

## کورنۍ دنده

په دين کې د پوهې د ارزښت په هکله يوه مقاله وليکئ چې له دوو مخونو څخه کمه نه وي.

# د دیني شعائرو تعظیم او درناوی

قال تعالی: ﴿ذَلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ حُرُمَاتِ اللَّهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ عِندَ رَبِّهِ وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ إِلَّا مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ۝حُنَفَاء لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاء فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ۝ ذَلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللَّهِ فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى الْقُلُوبِ﴾ [الحج: ٣٠ – ٣٢]

**د کلمو معنا**

| | |
|---|---|
| يُعَظِّمْ: | درناوی وکړي. |
| حُرُمَاتِ اللَّهِ: | (حرمات) د (حرمة) جمع ده او د الله حکمونو ته ویل کیږي چې سپکاوی یې روا نه دی. |
| الرِّجْسَ: | پلیتي. |
| الْأَوْثَانِ: | بتان. |
| قَوْلَ الزُّورِ: | دروغ ویناٰ. |
| حُنَفَاء : | له باطل څخه حق ته میلان کوونکي. |
| خَرَّ: | راوغورځیږي. |
| فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ: | مرغان هغه وتښتوي. |
| تَهْوِي: | وغورځوي. |
| مَكَانٍ سَحِيقٍ: | لرې ځای. |
| شَعَائِرَ اللَّهِ: | (شَعَائِرَ) د (شعيرة) جمع ده، نښو نښانو ته ویل کیږي او (الله) ته یې اضافت تشریفي دی. |

**ژباړه**

دا (حکمونه ومنئ) او څوک چې د الله د حرماتو درناوی وکړي نو دا د هغه د رب په نزد پخپله د هماغه لپاره ډېره غوره ده او ستاسې لپاره څاروي حلال وګرځول شول پرته له هغو څخه چې پر تاسو لوستل کیږي، نو د بتانو له پلیتی نه ځان وساتئ او دروغو له وینا نه ډډه وکړئ. د الله لپاره حق ته مخ اړونکي شئ، نه د هغه سره شریک ګرځوونکي، او څوک چې له الله سره شریک ونیسي نو داسې دی لکه له آسمانه چې راوغورځي او

مارغان یې وتښتوي او یا یې باد په یوه لرې ځای کې ورګوزار کړي، دا (حکمونه ومنئ) او څوک چې د الله د شعائرو درناوی وکړي نو دا د زړونو له پرهېزګارۍ څخه ده.

**تفسیر**

**د آیتونو شرح او څېړنه**

دا د (الحج) سورت آیتونه دي چې په مدینه منوره کې نازل شوي او د موضوع له اړخه د دې سورت له تېرو شوو آیتونو سره کلک تړاو لري. په تېرو آیتونو کې د توحید د مرکز (کعبې شریفې) د ودانولو یادونه شوې ده چې خلک به ورته د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه د حج د فریضې ادا کولو او د الله پاک د یادولو لپاره راځي، دلته به قرباني کوي، له کعبې مبارکې څخه به طواف کوي او د الله پاک له حکمونو سره سم به د حج نور مناسک ادا کوي.

په(ذَٰلِكَ) سره تېرو شویو احکامو ته اشاره ده او مسلمانانو ته ښیي چې د همدې حکمونو

سرته رسول ستاسو دنده او باید چې دا اوامر تاسو ومنئ.

له ﴿حُرُمَاتِ اللَّهِ﴾ څخه مقصد ټول هغه شیان دي چې الله پاک یې درناوی او احترام پر مسلمانانو واجب کړی، که هغه عبادتونه او د حج مناسک دي، که کعبه شریفه او د حرم سیمه ده، که د ډالۍ په توګه بیت الله ته وړل کېدونکي څاروي دي او که د الله پاک اوامر او نواهي دي.

د مؤمن لپاره د یادو شویو شیانو درناوی او احترام ساتل هغه غوره کار دی چې الله پاک پرې بنده ته اجر ورکوي.

د ﴿اللَّهِ﴾ لفظ ته د ﴿حُرُمَاتِ﴾ اضافت دې ته اشاره ده چې شیان او سیمه په خپل ذات کې کومه سپېڅلتیا او حرمت نه لري بلکې د حرمت اصلي لامل د الله حکم دی او بس. له همدې امله عمر (رضي الله عنه) به حجرالأسود ته ویل: زه پوهېږم چې ته له یوې تیږې پرته بل څه نه یې. نه چا ته زیان رسولای شې او نه ګټه، که ما رسول اللهﷺ ستا په ښکلولو نه وای لیدلای نو ما به ته ښکل کړې نه وای.

د حرماتو له یادونې وروسته الله پاک د مشرکانو هغه باطله عقیده رد کړه چې د یو لړ څارویو غوښې او شیدې یې د درناوي په توګه له کوم دلیل پرته پر ځان حرامې کړې

وي. الله تعالی فرمايي: ﴿وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ إِلَّا مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ﴾ د مسلمانانو لپاره د ټولو څارويو غوښې او شېدې خوړل روا دي مګر هغه چې په (الأنعام) او نورو سورتونو کې په تفصيل سره ذکر شوي دي. څرنګه چې د ځينو څارويو په اړه د مشرکانو تحريم او درناوي له شرکي عقيدې څخه سرچينه اخيستې وه نو الله پاك د شرک رد وکړ او ويې فرمايل: ﴿ فَٱجۡتَنِبُواْ ٱلرِّجۡسَ مِنَ ٱلۡأَوۡثَٰنِ وَٱجۡتَنِبُواْ قَوۡلَ ٱلزُّورِ ﴾ په دې مبارکه جمله کې دوه اړخونه ډېر د پام وړ دي:

**لومړی:** دا چې الله پاک د شرک څخه يوازې د منع کېدو امر نه بلکې د (اجتناب) يعنې شرک څخه د لرې اوسېدو امر کوي.

**دويم:** دا چې شرک او بت پالنه يې د غليظ نجاست﴿ ٱلرِّجۡسَ ﴾ په ټکي سره ياد کړل؛ ترڅو د شرک بدوالی مخاطب ته ښه روښانه شي.

﴿اوثان﴾ د (وثن) جمع ده او وثن بت ته ويل کيږي چې جسم لري.

څرنګه چې مشرکانو د څارويو په حراملو کې په الله پاك باندې دروغ ويلي وو نو آيت له دروغجنې وينا څخه د ځان ساتلو امر وکړ او د زيات ټينګار په بنسټ د ﴿ وَٱجۡتَنِبُواْ ﴾ ټکی بيا تکرار شو. رسول الله ﷺ په صحيح حديث کې د دروغو شاهدي له کبيره ګناهـونو څخه شمېرلې. څرنګـــه چې شرك هم دروغجنه وينا او دعوه ده نو د ﴿ قَوۡلَ ٱلزُّورِ ﴾ سره په يوه جمله کې ذکر شو.

د لغت له مخې (زُور) اوښتولو ته وايي او د دروغو په شاهدۍ کې هم انسان له حق او رېښتينې وينا څخه اوړي. ﴿حُنَفَاء لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ﴾ (حنفاء) د (حنيف) جمع ده، حنيف هغه چا ته ويل کيږي چې له باطل څخه حق ته مايل وي. مومن حنيف د الله سره په ذات او صفتونو کې د هيڅا شريکوونکی نه وي. د شرک د بدو پايلو بيانولو په موخه الله پاك د مشرك لپاره مثال بيان کړ او ويې فرمايل: ﴿وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاء فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ﴾ يعنې: د مشرك حال د هغه چا په څېر دی چې له اسمانه راخوشې شي او ځمکې ته له رسېدو وړاندې يې مرغان په هوا کې ونيسي او ويې تښتوي. يا دا چې په ځمکه راوغورځيږي او باد يې له ځان سره يوې بلې خوا ته يوسي او په کوم لرې ځای کې يې وغورځوي. څرنګه چې له آسمانه راخوشې شوی تن په هيڅ

ډول له تباهۍ ژغورل کېدای نشي نو د مشرك پایله هم له هلاکت پرته بل څه نه ده. په دې مثال کې د تمثیلي تشبیه په توګه د مشرك حالات د تباه کېدونکي شخص له حالاتو سره ورته ښودل شوي. د ځینو مفسرینو په وینا په دې تشبیه کې اسلام د آسمان، شهوات د مرغانو او شیطان د باد په بڼه انځور شوی. یعنې له اسلامه تښتېدونکی مشرك شخص د شهواتو او شیطان لاسونو ته غورځېږي چې هغوی وربانديې لوبې کوي او په پای کې یې د هلاکت کندې ته سپاري.

په ﴿ ذَٰلِكَ ﴾ سره د تېرو حکمونو د عملي کولو غوښتنه ده چې تشریح یې لږ وړاندې تېره شوه.

په ﴿ذَلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللَّهِ فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى الْقُلُوبِ﴾ جمله کې د شعائرالله درناوی د هغو زړونو کار دی چې له الله څخه وېره لري. شعائر د شعیرة جمع ده، شعیرة نښې او علامې ته ویل کیږي. په آیت کې د شعائرالله څخه مقصد د دین نښې او په ځانګړي ډول هدایا (دقربانۍ څاروي) او د حج مناسك دي. له همدې امله به صحابه وو کعبې ته وړل کېدونکي څاروي څربول او د هغوی درناوی به یې کاوه. د شعائرو د تعظیم څخه مقصد درناوی او په ښه ډول د حکمونو ترسره کول دي. د تقوا اضافت زړه ته شوی ځکه د تقوا اصلي ځای د انسان زړه دی، له همدې کبله رسول اللهﷺ فرمایي: «التقوی ههنا و أشار بیده إلی صدره ثلاث مرات»[1].

د تقوا ځای دا دی او په لاس سره یې زړه ته درې ځله اشاره وکړه.

---

[1] – مسند احمد و السنن الکبری للبیهقی.

# د ديني شعائرو تعظيم او درناوی

### د آيتونو لنډ مفهوم

په لوستل شويو آيتونو کې الله پاک د خپلو اوامرو او نواهيو د منلو او درناوي غوښتنه کړې او د څارويو د حراموالي په اړه يې د مشرکانو باطله عقيده رد کړې چې له شرک څخه يې سرچينه اخيسته. پر دې سربېره يې له شرک او د دروغو له وينا څخه خلک منع کړل او د يوه مثال په بيانولو سره يې خلک د شرک له ناوړو پايلو څخه ووېرول. په وروستي آيت کې د شعائرالله درناوی د زړه تقوا او د مخلص مسلمان کار ګڼل شوی.

### د حرمات الله او شعائرالله درناوی

د دې لوست آيتونه د حرمات الله په تعظيم پيل او د شعائرالله په تعظيم پای ته رسېدلي دي. د آيتونو په تحليل کې مو ولوستل چې د (حرمات الله) او (شعائرالله) ټکي د الله تعالی حکمونو، د حج مناسکو او ټولو هغو ديني نښو او مقدساتو ته شاملېږي چې الله پاک يې د درناوي حکم کړی. شعائرالله يا ديني مقدسات کله د سيمو په بڼه وي لکه کعبه شريفه، نبوي مسجد، د اقصی مسجد، د مشعرالحرام سيمه او د ځمکې په مخ ټول مسجدونه. د وخت او زماني په بڼه هم ديني مقدسات وجود لري لکه د رمضان مياشت، د عَرَفې او اخترونو ورځې، د عاشورا ورځ، د ذوالحجې د مياشتې لومړنۍ لس ورځې او داسې نور.
پر دې سربېره د الله حکمونه ټول په ديني مقدساتو کې شامل دي لکه لمونځ، روژه، زکات، حج، جهاد، حدود، قرآني آيتونه، د توحيد کلمه او داسې نور.
د خوږ پيغمبر حضرت محمدﷺ، اهل بيتو (کورنۍ)، صحابه وو، تابعينو او د امت د حق پالونکو عالمانو مقام ته درناوی او احترام د مسلمان دنده ده.
د ﴿ وَأُحِلَّتۡ لَكُمُ ٱلۡأَنۡعَـٰمُ ﴾ جملې تفسير دا په ډاګه کوي چې د شعائرالله څخه د کوم شي د شمېرلو لپاره د شرعي دليل موجوديت ضروري دی. د شرعي دليل د نه موجوديت په صورت کې نه کوم شی د شعائرالله څخه شمېرل کيږي او نه يې مسلمانان په درناوي

مکلف دي. همدا راز هغه شيان چې د نورو دينونو پيروان يې مقدس ګڼي خو د اسلام له نظره له مقدساتو څخه نه وي، د مسلمانانو لپاره يې مقدس شمېرل روا نه دي.
الله پاك په (المائدة) سورت کې په څرګند ډول د شعائرالله له سپکاوي څخه منع کړې او فرمايي: ﴿يا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تُحِلُّوا شَعائِرَ اللَّهِ﴾ [المائدة:٢] **ژباړه:** اى مومنانو! د شعائرالله بې حرمتي مه کوئ.
د (النساء) سورت د شعائرالله د سپکاوي يوه بېلګه بيانوي او فرمايي: ﴿وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ حَتَّى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ﴾ [النساء:١٤٠] **ژباړه:** (الله) په (دې) کتاب کې په تاسو (دا امر) نازل کړی چې که (په هر ځای کې) واورئ چې د الله په آيتونو کفر کيږي او ټوکې وړپورې کيږي نو له هغوی سره مه کېنئ تر هغه چې هغوی په بله خبره کې بوخت شي.
قرآني آيتونه د شعائرالله په سر کې ځای لري. قرآن کريم ته د نيمګړتيا نسبت کول او يا په هغه پورې ټوکې او مسخرې کول د کفر سبب کيږي. که چېرې د مومنانو په وړاندې د قرآن کريم او نورو ديني شعائرو پورې ټوکې يا سپکاوی وشي نو په مومنانوفرض دي چې ټوکې کوونکي له دې کار څخه منع کړي، که يې د ضعف له امله د منعې کولو وس نه درلود بايد چې له هغه مجلس څخه ووځي.
په قرآني آيتونو پورې ټوکې کول د يهودانو او منافقانو کار و چې په اړه يې پورتنی آيت نازل شو او مسلمانان ورسره د ټوکو په حال کې له ناستې څخه منع شول.
قرآني آيتونه او د توحيد کلمه په ځمکه غورځول او يا د پښو لاندې کول، صحابه وو ته کنځل کول، د لمانځه او روژې پورې ټوکې کول او سپکې سپورې ويل د ديني شعائرو سپکاوی دی چې په ټينګه ورڅخه ځان ساتل پکار دي.
لکه څنګه چې د ديني شعائرو سپکاوی د يهودو او منافقانو عمل دی په همدې توګه د ديني شعائرو احترام او درناوی د الله تعالى د هغو مخلصو بندګانو کار دی چې په زړه کې له الله څخه وېره لري او د هغه سره محبت کوي.

**د شرک بدوالی**

د الله تعالى سره شريك نيول تر ټولو ستره او نه بخښل کېدونکې ګناه ده. د قرآن کريم په خورا زياتو آيتونو کې په بېلابېلو ډولونو له شرك څخه منع شوې او انسانان د الله

تعالی د توحید منلو ته رابلل شوي. د شرکي عقېدې څخه پاکوالی د ایمان د صحت لپاره شرط دی.

په صحېحینو کې له ابو بکرة څخه روایت شوی چې رسول اللهﷺ وفرمایل: «ألا أُنبِّئكم بأكبر الكبائر قلنا : بلى يا رسولَ الله، قال: الإشراكُ بالله، وعقوقُ الوالدين، –وكان متَّكئا فجلس– ألا وشهادةُ الزور، وقولُ الزور فما زال يكرّرُها حتى قلنا: ليته سكتَ». [۱]

**ژباړه:** آیا تاسو ته تر ټولو ستره ګناه ونه ښیم؟ موږ وویل: ولې نه ای د الله رسوله. هغه وفرمایل: د الله تعالی سره شریک نیول او د مور او پلار خبره نه منل. رسول الله ﷺ تکیه کړې وه نو راپاڅېده او ویې ویل: خبر اوسئ! او د دروغو وینا، خبر اوسئ! او د دروغو شاهدي. رسول اللهﷺ دا جمله دومره تکراروله چې موږ وویل: کاش چې رسول الله چوپ شي (او دا جمله نوره تکرار نه کړي.)

**فعالیت**

زده کوونکي دې د شرک د حراموالي په اړه د قرآني آیتونو او نبوي احادیثو په رڼا کې بحث وکړي.

## د لوست ګټې اولارښوونې

پورتنی لوست ډېرې ګټې او لارښوونې لري چې ځنې یې په لاندې ډول دي:

❖ د حرمات الله درناوی کول غوره کار او د اجر لامل کیږي.

❖ د څارویو د غوښو خوړل روا دي پرته له هغو چې په قرآن کریم او نبوي احادیثو کې بیان شوي.

❖ بتان نجس او پلیت دي، عبادت کول یې شرک او لویه ګناه ده.

❖ له دروغو وینا څخه ډډه کول فرض دي ځکه چې الله تعالی ورڅخه په قرآن کریم کې منع کړې او په مبارک حدیث کې لویه ګناه ګڼل شوې ده.

❖ مشرک د داسې هلاکت سره مخامخ دی چې هیڅوک یې ورڅخه ژغورلای نشي.

❖ د دیني شعائرو درناوی او احترام واجب او څوک چې د دیني شعائرو درناوی کوي دا یې د زړه د تقوا نښه ده.

---

[۱] – متفق علیه.

## پوښتنې

۱- لاندې ټکي معنا کړئ:

(ٱلرِّجْسَ، ٱلْأَوْثَـٰنِ، قَوْلَ ٱلزُّورِ، خَرَّ، فَتَخْطَفُهُ ٱلطَّيْرُ)

۲ـ په آيت کې په ﴿ ذَٰلِكَ ﴾ سره کوم شي ته اشاره شوې؟ روښانه يې کړئ.

۳- له ﴿ حُرُمَـٰتِ ٱللَّهِ ﴾ څخه مقصد کوم شيان دي؟

٤- د ﴿وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ إِلَّا مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ﴾ په جملې سره د کومې عقيدې رد شوى دى؟

٥- د ﴿ شَعَـٰٓئِرِ ٱللَّهِ ﴾ معنا بيان کړئ.

٦- د شرك او دروغ وينا د حراموالي په اړه يو نبوي حديث بيان کړئ.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د (ديني مقدساتو د سپکاوي څخه د مخنيوي لارې چارې) تر عنوان لاندې يوه مقاله وليکي چې له شلو کرښو کمه نه وي.

# ټولنیز عدالت د قرآن په رڼا کې

قال تعالی: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُونُواْ قَوَّامِينَ لِلّهِ شُهَدَاء بِالْقِسْطِ وَلاَ يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلاَّ تَعْدِلُواْ اعْدِلُواْ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَاتَّقُواْ اللّهَ إِنَّ اللّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ (المائدة: ٨)

**د کلمو معنا**

قَوَّامِينَ لِلَّهِ: (قوامین) د (قوام) جمع ده، په ښه توګه همیشه د کار ترسره کوونکي.

شُهَدَآءَ: ګواهي ورکوونکي.

بِٱلْقِسْطِ: په عدل سره.

وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ: تاسو دې نه اړباسي.

شَنَـَٔانُ: دښمني او کینه.

**ژباړه**

ای مومنانو، د الله ﷻ لپاره کلک ولاړ او د عدل شاهدان اوسئ. د کومې ډلې دښمني دې تاسې دې ته اړ نه باسي چې له عدالت څخه واوړئ. عدالت وکړئ. عدالت تقوا ته نږدې دی او له الله پاک نه وډار شئ. بېشکه الله پاک ستاسو په کړنو ښه خبر دی.

**تفسیر**

**د آیت شرحه او څېړنه**

په پورتني مبارک آیت کې الله پاک مومنانو ته امر کوي چې د هغه د اوامرو په عملي کولو او حق ټینګ ودرېږي. ﴿ قَوَّامِينَ ﴾ د (قوام) جمع او د مبالغې صیغه ده. (قوام) هغه چا ته ویل کیږي چې یو کار په تکرار او همېشه والي سره کوي، داسې چې نوموړی کار یې عادت او کسب وګرځي او په ډېر ښه او بشپړ ډول یې سرته رسوي. په مبارک آیت کې د (لِلَّهِ) ټکی راغلی او دا څرګندوي چې د اوامرو منل او د حق په ځای کول به یوازې د الله د رضا لاس ته راوړلو په خاطر وي نه د کوم دنیوي غرض او ځان ښودنې لپاره.

له مومنانو څخه د مبارك آيت دويمه غوښتنه ﴿ شُهَدَآءَ بِٱلۡقِسۡطِ ﴾ په عدالت د ګواهۍ

ورکول دي. مومنان بايد د قاضي، حاکم او هر چا په وړاندې ريښتيني ګواهي ووايي او واقعيتونه پټ نه کړي. د ګواهۍ ويلو په مهال د خپلوانو، ملګرو او مادي ګټو په خاطر حق پټ نه کړي او هم د چا د دښمنۍ، وېرې او بې وزلۍ له امله په حقايقو کې بدلون رانه وړي.

د دښمنانو په اړه انصاف کول او د هغوی حقونه پوره ورکول د انساني طبيعت له مخې آسانه کار نه دی نو الله پاک يې په دې جمله ﴿ وَلَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شَنَـَٔانُ قَوۡمٍ عَلَىٰٓ أَلَّا تَعۡدِلُواْ ﴾ کې ځانګړې يادونه وکړه چې مومنان به د کافرانو سره هم له عدالت څخه کار اخلي او څوك دې دا ګمان نه کوي چې د کافر په معامله کې عدالت پرېښودل روا دي.

مبارك آيت يوازې په ځانګړې يادونه بسيا ونه کړه بلکې د ﴿ ٱعۡدِلُواْ هُوَ أَقۡرَبُ لِلتَّقۡوَىٰ ﴾ په امريه جملې سره يې يو ځل بيا په عدالت کولو ټينګار وکړ او دا يې جوته کړه چې عدالت د ګناهونو او د الله پاك د عذاب څخه د ځان ساتلو لار ده. عدل په لغت کې برابروالي ته وايي او د ظلم ضد دی، د شرعي اصطلاح له مخې هر حقدار ته د هغه حق ورکول عدل بلل کيږي. د دوست او دښمن دواړو سره يو رنګ عدالت او انصاف کول په حقيقت کې يو ستر مقام او غوره صفت دی، دا مقام او صفت هغه وخت انسان ته په برخه کيږي چې په ځان کې تقوا او د الله پاك څخه وېره پيدا کړي. الله ﷻ

په دې آيت کې په تقوا امر کوي: ﴿وَاتَّقُواْ اللّهَ إِنَّ اللّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ په خپلو زړونو کې د الله وېرې ته ځای ورکړئ (څو عدالت کول درته آسانه شي،) دا هم په ياد لرئ چې هغه ستاسو په پټو او ښکاره عملونو او ستاسو په نيتونو ښه خبر دی. (او تاسو ته به ستاسو د عملونو سزا او اجر درکوي.)

په دې آيت کې د ﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ په عنوان سره خطاب شوی او مؤمنانو ته هغه ژمنه او تعهد يادوي چې د توحيد د کلمې په ويلو سره يې د الله پاك سره کړی. پر دې سربېره په آيت کې د (قوامين) او (القسط) ټکي راغلي او په بېلابېلو صيغو د عدالت کولوغوښتنه شوې، په دې هم بسيا نده شوې بلکې عدالت د تقوا سره تړل شوی او په پای کې دا زياته شوې چې الله ستاسو په عدالت کولو او عدالت پرېښودلو باندې ښه خبر

دی. د دومره تاکیداتو وروسته د یوه مومن په وړاندې د عدالت د ارزښت او فرضیت په اړه هیڅ پوښتنه نه پاتې کیږي.

**د آیتونو لنډ مفهوم**

په مبارك آیت کې مومنانو ته د دنیا او آخرت د نیکمرغیو لاس ته راوړلو په اړه لارښوونې شوي، له مومنانو څخه غوښتنه شوې چې د الله پاك د رضا کولو لپاره دې تل پر حق ولاړ اوسي، په ګواهۍ ویلو کې دې له دروغو او ظلم څخه ځان وساتي، آن د دښمن او کافر قوم په وړاندې دې هم له انصاف څخه کار واخلي او د هغوی په حق کې دې له حد څخه تېری نه کوي ځکه بې عدالتي او ظلم د ټولنې سوکالي او امن له منځه وړي. تقوا چې د مومن خوی دی له عدالت سره ټینګې اړیکې لري او مومن عدالت کولو ته رابولي. د آیت په پای کې الله ﷻ مومنانو ته د تقوا غوره کولو سپارښتنه کوي او دا هم ورته یادوي چې که د عدالت ځای مو ظلم ته پرېښود نو هغه متعال ذات ستاسو په عملونو ښه خبر دی.

**اسلام د دنیا او آخرت دین دی**

الله پاك انسان د توحید منلو لپاره پیدا کړی او د الله ﷻ پر عبادت سربېره یې هغه ته د نړۍ د ودانولو دنده هم سپارلې او فرمایي: ﴿إِنِّي جَاعِلٌ فِي الأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ (البقرة: ۳۰)
**ژباړه:** زه په ځمکه کې د یوه خلیفه پیدا کوونکی یم.

د ځمکې د ودانولو، پرمختګ او سوکاله ټولنې د رامنځته کولو لپاره یې هغوی ته د عدالت او انصاف کولو امر کړی. که انسان د عادلانه نظام راوستلو په ترځ کې د دنیا نېکمرغیو ته رسیږي، له بل پلوه په همدې کار سره د الله تعالی رضا لاس ته راوړي او په اخرت کې یې د بریالیتوب لامل کیږي.

د ﴿ قَوَّامِينَ لِلَّهِ ﴾ جمله د انسان دنیوي هلې ځلې او کوښښ د اخروي کامیابۍ سره تړي. انسانان یوازې هغه مهال یو بشپړ عادلانه نظام رامنځته کولای شي چې د الله څخه وېره او د آخرت تمه ولري.

**په عدل ګواهي ورکول**

ګواهي ورکول د حق د ښکاره کولو او عدالت د خوندي کولو وسیله ده. د اړتیا پر مهال په حقه شاهدي ویل د الله پاک د دې وینا په اساس واجب دي چې فرمایي: ﴿وَلا يَأْبَ الشُّهَداءُ إِذا ما دُعُوا﴾ (البقرة: ۲۸۲) **ژباړه:** کله چې له ګواهانو څخه د ګواهۍ ورکولو غوښتنه وشي، نو هغوی دې ډډه نه کوي. په بل ځای کې فرمایي: ﴿وَلا تَكْتُمُوا الشَّهادَةَ. وَمَنْ يَكْتُمْها فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ﴾ (البقرة: ۲۸۳) **ژباړه:** او شاهدي هیڅکله مه پټوئ، څوک چې شاهدي پټوي د هغه زړه په ګناه خیرن دی.

له مؤمن څخه د قرآن غوښتنه دا ده چې ګواهي به یوازې د الله لپاره وایي او د پوره ریښتینولۍ او امانت څخه به کار اخلي. په ګواهۍ کې به له حق پرته د بل هیڅ شي پروا نه کوي. قرآن کریم د النساء په سورت کې دا موضوع په لړ تفصیل سره روښانه کړې او فرمایي: ﴿يا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَداءَ لِلَّهِ وَلَوْ عَلى أَنْفُسِكُمْ أَوِ الْوالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ إِنْ يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيراً فَاللَّهُ أَوْلى بِهِما فَلا تَتَّبِعُوا الْهَوى أَنْ تَعْدِلُوا وَإِنْ تَلْوُوا أَوْ تُعْرِضُوا فَإِنَّ اللَّهَ كانَ بِما تَعْمَلُونَ خَبِيراً﴾ (النساء:۱۳۵) **ژباړه:** ای مومنانو، د عدالت علمبرداران او د الله لپاره شاهدان اوسئ که څه هم ستاسې د عدالت کولو او شاهدۍ زیان په خپله تاسې یا ستاسو مور او پلار یا ستاسې خپلو خپلوانو ته رسیږي. د معاملې لوری شتمن وي او که بېوزله، الله له تاسې نه زیات د هغه خیر غوښتونکی دی، په دې اساس د خپلو نفسي غوښتنو د پیروۍ له امله عدالت مه پرېږدئ، او که تاسې ګډې وډې وواياست یا له ریښتیا ویلو نه ډډه وکړئ نو وپوهیږئ چې څه کوئ الله پرې خبر دی.

لنډه دا چې ریښتیا ویل او په حق ګواهي ورکول د الله امر دی، که ددې ګواهۍ زیان د انسان ډېرو نږدې خپلوانو یعنې مور پلار او آن د انسان خپلو شخصي ګټو ته هم رسیږي نو له ریښتیا ویلو به نه تیریږي، د چا شتمني او بې وزلي هیڅکله د حقایقو د بدلولو لپاره دلیل کېدلای نشي او نه څوک د الله له عذابه ژغورلای شي.

په مبارک آیت کې د شهید جمع (شُهَداءَ) راغلی. (شهید) دصفت مشبه صیغه ده او د عربي ژبې د پوهانو په وینا دغه صیغه د هغه چا لپاره کارول کیږي چې په تکراري او همېشنی توګه یو کار سرته رسوي.

د آیت غوښتنه دا ده چې مومنان به تل د الله لپاره ګواهي ورکوي او دا د هغوی یو نه جلا کېدونکی خوی دی.

همدا راز الله پاك د (الانعام) په سورت کې فرمايي: ﴿وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُواْ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَى﴾ (الأنعام: ١٥٢) **ژباړه:** او کله چې خبره کوئ په عدالت سره يي وکړئ که معامله د خپل خپلوان هم وي.

په مخکنيو آيتونو کې د (شهداء) ټکی راغلی و خو په دې آيت کې د (قلتم) ټکی راغلی، پايله دا راوځي چې که په محکمه او د قاضي په وړاندې ګواهي وي او که په عام ډول د چا په اړه خبره کول وي، په ټولو ځايونو کې له عدالت څخه کار اخيستل واجب دي، د خپلوۍ او پرديتوب، دوستۍ او دښمنۍ، سيمې، ژبې او قوم لپاره په ګواهۍ او قضاوت کې توپير کول ناروا او د ريښتينو مومنانو له خويونو څخه نه دي.

# ټولنيز عدالت د قرآن په رڼا کې

**ټولنيز عدالت**

عدل د شريعت اساس او د سوکالۍ ټولنې د رامنځته کولو وسيله ده. د خلکو حقونه يوازې د عدل په مټ خوندي کېدای شي. د قرآن کريم له مخې عدل د ژوند په يوه اړخ پورې محدود نه دی، بلکې د ژوند په ټولو اړخونو کې عدل واجب دی که هغه قانون وي، که سياست وي، که اقتصاد وي او که د ژوند بل اړخ، آن دا چې قرآن کريم د پيغمبرانو د لېږلو موخه د عدالت پلي کول ښيي او فرمايي: ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ﴾ (الحديد:۲۵) **ژباړه:** موږ خپل پيغمبران له څرګندو نښانو سره ولېږل او له هغوی سره مو کتاب او تله نازل کړل تر څو چې خلک پر عدل ولاړ وي.

څرنګه چې په بشري ټولنه کې له عدالت پرته نه نظم راځي او نه ګډوډي له منځه ځي، نو الله پاک د نورو ټولنيزو لارښوونو په سر کې د عدالت يادونه کوي او فرمايي: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ﴾ (النحل:۹۰) **ژباړه:** الله پاک د عدل، ښېګڼې او خپلوۍ د پالنې حکم کوي او له بدۍ، بې حيايي او زور ظلم څخه منع کوي.

کله چې عدالت له ټولنې څخه کډه وکړي، نو سملاسي يې ځای ظلم نيسي. ظلم د ټولو بدمرغيو او د دنيوي او اخروي عذابونو ستر لامل دی. قرآن کريم په دې اړه فرمايي: ﴿فَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا﴾ (الحج:٤٥) **ژباړه:** څومره د ظالمانو سيمې دي چې موږ هغه تباه کړي دي او نن هغه په خپلو چتونو باندې نسکورې پرتې دي.

د عدالت د زيات اهميت او اړتيا له کبله قرآن کريم په بېلابېلو صيغو او عبارتونو د عدل يادونه کړې؛ کله د پيغمبرانو د لېږلو موخه عدالت کول ښيي؛ کله مومنانو ته د عدل کولو امرکوي او کله بيا رسول اللهﷺ ته په عدل امر کوي. د (الشورى) په سورت کې راغلي: ﴿وَأُمِرْتُ لِأَعْدِلَ بَيْنَكُمُ﴾ (الشورى:١٥) **ژباړه:** ما ته امر شوی چې ستاسو په منځ کې عدل

وکړم. په همدې ډول په بل ځای کې فرمايي: ﴿قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ﴾ (الأعراف: ١٥) **ژباړه:** زما رب ما ته د انصاف کولو امر کړی دی. په دې حکمونو سربېره قرآن کريم د ځانګړو موضوعاتو په اړه هم د عدالت په پام کې نيولو حکم کړی لکه:

**١ – په تله او پيمانه کې عدالت:** قرآن کريم د بيعې په مهال په تللو او پيمانه کولو کې د عدل او برابرۍ امر کوي او فرمايي: ﴿وَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بالقسط﴾ (الأنعام:١٥٢). يعنې: تله او پيمانه په عدل سره پوره تلئ.

**٢ – په وينا کې عدالت:** له مومنانو څخه د قرآن کريم غوښتنه دا ده چې د عامو خبرو کولو پر مهال به هم له عدالت څخه کار اخلي او د خلکو په اړه به هغه څه وايي چې رېښتيا او واقعيت وي. د (الأنعام) سورت موږ ته داسې لارښوونه کوي: ﴿وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَى﴾ (الأنعام: ١٥٢) **ژباړه:** او کله چې خبره کوئ په عدالت سره يې وکړئ که معامله د خپل خپلوان هم وي.

**٣ – په ګواهۍ کې عدالت**

د قاضي او محکمې په وړاندې په ګواهۍ ويلو کې عدالت کول د قرآن غوښتنه ده چې څو ځلې تکرار شوې او لړ مځکې يې يادونه وشوه.

**٤ – په پرېکړه کې عدالت**

قرآن کريم مومنانو ته حکم کوي چې د پرېکړې او قضاوت کولو پر مهال له توپير پرته عدالت وکړي، فرمايي:﴿وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ أَن تَحْكُمُواْ بِالْعَدْلِ﴾ (آل عمران:٥٨) **ژباړه:** او کله چې د خلکو په منځ کې پرېکړه کوئ نو په عدالت سره يې وکړئ.

په دې بنسټ د پرېکړې پر مهال د خپلوۍ، قوم، ژبې او سيمې لپاره عدالت قرباني کول د الله پاک له حکمونو څخه سرغړونه ده.

دا آيت په څرګند ډول له مسلمانانو څخه غواړي چې قانون بايد په شتمن او بې وزله، آمر او مامور او د ټولنې په واکمنو او بې وسو خلکو يو ډول پلی شي. د صحيح البخاري د روايت له مخې د رسول اللهﷺ په زمانه کې يوې ښځې غلا وکړه، د نوموړې ښځې د قبيلې خلکو د پيغمبرﷺ خوږ ملګری اسامه (رضي الله عنه) هغه ته واسطه کړ څو له سزا ورکولو تېر شي. رسول اللهﷺ د سپارښتنې او واسطې په دې کار سخت غوسه شو او خلکو ته يې وويل: له تاسو څخه پخواني امتونه له دې امله تباه شوي وو چې که شتمن

سړي به غلا وکړه نو له سزا پرته به يې پرېښودو خو که بې وزله به غلا وکړه لاس به يې ترې غوڅولو. په خدای قسم که د محمد لور فاطمې غلا کړې وای هم به مې لاس ترې غوڅ کړی و. عايشه رضی الله عنها فرمايي چې پيغمبرﷺ نوموړې ښځې ته سزا ورکړه او هغې هم توبه وويسته چې وروسته يوه پرهېزگاره ښځه ترې جوړه شوه.

**۵ – د دښمنانو په اړه عدالت**

قرآن کريم د دښمنانو او کافرانو په حق کې هم د عدالت د پرېښودلو اجازه نه ورکوي او داسې حکم کوي: ﴿وَلاَ يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلاَّ تَعْدِلُواْ﴾.

رسول اللهﷺ د هغو نامسلمانو معاهدو خلکو په اړه چې د اسلامي حکومت تر بيرغ لاندې اوسيږي، فرمايي: «أَلاَ مَنْ ظَلَمَ مُعَاهِدًا أَوِ انْتَقَصَهُ أَوْ كَلَّفَهُ فَوْقَ طَاقَتِهِ أَوْ أَخَذَ مِنْهُ شَيْئًا بِغَيْرِ طِيبِ نَفْسٍ فَأَنَا حَجِيجُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»[1] **ژباړه:** چا چې پر معاهد ظلم وکړ، يا يې هغه ته زيان ورساوه، يا يې له توان څخه په پورته کار وګوماره او يا يې هم له هغه څخه د هغه له خوښې پرته څه شی واخيست نو د قيامت په ورځ به يې زه پخپله مدعي يم.

کله چې قرآن کريم د کافرانو په اړه د عدالت امر کوي نو د مومنانو او دوستانو سره ظلم کول خو په هيڅ ډول روا نه دي.

په عدالت د امر کولو سربېره قرآن کريم ظلم او ظالمان سخت غندلي، هغوی يې د الله پاک له رحمت څخه لرې ګڼلي او د دردناک عذاب ژمنه يې ورسره کړې چې فرمايي: ﴿أَلاَ لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ﴾ (هود: ۱۸) **ژباړه:** خبر اوسئ! په ظالمانو د الله لعنت دی. همدا راز فرمايي: ﴿إِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ (ابراهيم: ۲۲) **ژباړه:** بېشکه د ظالمانو لپاره دردناک عذاب دی.

رسول اللهﷺ هغه شخص هم د الله په عذاب اخته ګڼلی چې د ظالم مرسته کوي، فرمايي: «مَنْ أَعَانَ عَلَى خُصُومَةٍ بِظُلْمٍ، أَوْ يُعِينُ عَلَى ظُلْمٍ، لَمْ يَزَلْ فِي سَخَطِ اللهِ حَتَّى يَنْزِعَ»[2] چا چې په کومه شخړه کې د ظلم مرسته وکړه، تر هغې به د الله پاک په غضب اخته وي څو چې دا مرسته پرېږدي.

---

۱– سنن ابي داود

۲– رواه بن ماجه في سننه

پر عدالت د قرآني آیتونو او مبارکو حدیثونو دومره زیات ټینګار دا جوتوي چې مومن یوازې په فردي توګه په عدالت کولو مکلف نه دي بلکې له مومنانو څخه د شریعت غوښتنه دا ده چې دوی باید په نړۍ کې د عدالت د بیرغ پورته کوونکي او د ځمکې په مخ د یوه نړیوال عادل نظام راوستونکي وي.

پورتني آیتونه په ټولنه کې د هر اړخیز او بشپړ عدالت غوښتنه کوي چې لاندې موارد یې د بېلګې په توګه وړاندې کیږي:

١ - په اسلامي ټولنه کې باید قوانین له توپیر پرته پر شتمن او بې وزله، آمر او مامور، ځواکمن او بې وسه یو ډول تطبیق شي او ټول د قانون په وړاندې په عملي توګه یو برابر وي.

٢ - چارواکي اود ټولنې واکمنان باید دشمنۍ په وېش کې عدالت اوانصاف مراعات کړي، او ټولو افرادو ته به د هغوی د وړتیاوو سره سم د کار یو ډول فرصتونه رامنځته کوي.

٣ - د زده کړو آسانتیاوې به ټولو وګړو ته له توپیر پرته چمتو کیږي څو ټولنه له طبقاتي نظام څخه وژغورل شي او وګړي له کوم تبعیض پرته د وروںو په څېر ژوند وکړي.

## له الله ﷻ څخه وېره

﴿اعْدِلُواْ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَاتَّقُواْ اللّهَ إِنَّ اللّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾

د تقوا لغوي معنا ساتنه او دفع کول دي. د شرعې په اصطلاح کې د نېکیو په کولو او د بدیو په پرېښودلو سره د الله پاک له عذاب څخه ځان ژغورلو ته تقوا ویل کیږي.

له ابوهریره رضی الله عنه څخه د تقوا د معنا په اړه پوښتنه وشوه. هغه وویل: آیا په ازغنه لاره تللی یئ؟ پوښتونکي وویل: هو. ابوهریره رضی الله عنه وویل: په ازغنه لار څه ډول تیرېږې؟ پوښتونکي وویل: کله چې ازغی وینم لاره بدلوم او ځان تري ساتم. ابوهریره رضی الله عنه وویل: همدا تقوا ده.

یعنې د ګناه په لیدو سره له هغې څخه لاره بدلول او ورڅخه ځان ساتل تقوا ګڼل کیږي.

په قرآن کریم کې د تقوا په اړه خورا زیات آیتونه راغلي او مومنانو ته په تقوا خپلولو امر شوی.، الله پاک فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ﴾ (آل عمران: ١٠٢) **ژباړه:** ای مومنانو! له الله نه داسې ووېرېږئ څنګه چې له هغه نه د وېرېدو حق دی. په مومن کې د عدالت خوی د تقوا په نتیجه کې رامنځته کیږي. مومنان یوازې هغه مهال بشپړ او هر اړخیز عدالت رامنځته کولای شي چې په ځانونو کې تقوا پیدا کړي.

تقوا د ټولنې په سوکالۍ او پرمختګ کې زیات اغېز لري، کله چې په واقعي توګه د الله وېره د انسانانو په زړونو کې ځای ونیسي، دا وېره د دې لامل کیږي چې خلك په هر ځای کې له خیانت، غلا، ظلم، فحشا او ټولو ناوړو کارونو څخه ځانونه وژغوري او ټولنې ته امن راشي. همدا راز له الله څخه وېره انسانان د خالق او مخلوق حقونو ادا کولو ته اړباسي.

رسول الله ﷺ په دې اړه داسې امر کوي: «اتق الله حيث ما كنت، وأتبع السيئة الحسنة تمحها، وخالق الناس بخلق حسن» [1] **ژباړه:** هر چېرې چې یاست له الله نه ووېرېږه! په بدۍ پسې نیکي کوه څو له منځه یې یوسي او د خلکو سره ښه چلن کوه.

## د تقوا ګټې

تقوا زیاتې دنیوي او اخروي ګټې لري چې ځینې یې په لنډ ډول داسې څرګندوو:

۱ – **د الله پاک مرسته او ملتیا:** الله پاک فرمايي: ﴿وَاعْلَمُواْ أَنَّ اللّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ﴾ (التوبه: ۳٦) **ژباړه:** ویوهیږئ چې الله د متقیانو ملګری دی. بل ځای فرمايي: ﴿وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَخْشَ اللَّهَ وَيَتَّقْهِ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ﴾ (النور: ٥۲) **ژباړه:** هغه کسان بریالي دي چې د الله پاك او د هغه د پیغمبر امر ومني او له الله څخه ووېرېږي.

۲ – **د ګناهونو بخښنه:** الله پاك فرمايي: ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُعْظِمْ لَهُ أَجْرًا﴾ (الطلاق: ٥) **ژباړه:** څوك چې له الله نه ووېرېږي الله پاك به د هغه ګناهونه وبخښي او اجر به یې زیات کړي.

۳ – **جنت ته ننوتل:** متقیان به په جنت کې وي: ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ﴾ [الحجر:٤٥] **ژباړه:** متقیان به په جنتونو او چینو کې وي.

۴ – **د زړه ډاډ او د ستونزو هواریدل:** په دې اړه الله پاك فرمايلي: ﴿أَلا إِنَّ أَوْلِيَاء اللّهِ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ۝الَّذِينَ آمَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ﴾ [یونس: ٦۲-٦۳] **ژباړه:** خبر اوسئ! څوك چې د الله دوستان دي پر هغوی کومه وېره او کړاو نشته، هغوی چې ایمان یې راوړی او تقوا یې خپله کړې.

په بل آیت کې فرمايي: ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا﴾ (الطلاق: ۲) **ژباړه:** څوك چې له الله نه ووېرېږي، الله به د هغه لپاره له ستونزو نه د وتلو لار پیدا کړي.

---

[1] – مسند البزار.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

- په هر وخت او هر ځای کې د الله اطاعت د مومن دنده ده.
- په ګواهۍ ورکولو کې باید رېښتیا او واقعیت په پام کې ونیول شي. نه خپلوي، دوستي او یا کومه بله اړیکه.
- له چا سره دښمني باید د عدالت د پښو لاندې کولو لامل نه شي.
- په پټو او ښکاره ځایونو کې له الله پاك څخه وېره کول.
- تقوا غوره کول د عدالت لامل کیږي.
- په تقوا غوره کولو سره انسان ډېرې دنیوي او اخروي ګټې ترلاسه کوي.
- عدالت یوازې په محکمه کې په پرېکړو پورې منحصر نه دی بلکې په عامو خبرو او هر ځای کې عدالت کول فرض دی.

**فعالیت**

زده کوونکي دې له یادو څخه د تقوا په اړه مبارك آیتونه او حدیثونه له ژباړې سره خپلو ملګرو ته ولولي.

**پوښتنې**

۱- لاندې کلمې معنا کړئ:

(قَوَّٰمِينَ لِلَّهِ، شُهَدَآءَ بِٱلۡقِسۡطِ، وَلَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ)

۱- د لوستل شویو آیتونو لنډ مفهوم روښانه کړئ.

۳- (قوامین) کومه صیغه ده او هم یې معنا روښانه کړئ.

٤- د عدل لغوي او اصطلاحي معنا ووایاست.

٥- د عدالت کولو په اړه دوه قرآني آیتونه ولولئ.

٦- د تقوا لغوي او اصطلاحي معنا بیان کړئ.

٧- د تقوا دنیوي او اخروي ګټې کومې کومې دي؟

**کورنۍ دنده**

(پر ټولنې باندې د عدالت اغېزې) تر سرلیك لاندې یوه مقاله ولیکئ چې له شلو کرښو کمه نه وي.

# د انسان د وينو تویولو حرمت

﴿وَلاَ تَقْتُلُواْ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّهُ إِلاَّ بِالحَقِّ وَمَن قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَانًا فَلاَ يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ إِنَّهُ كَانَ مَنْصُورًا﴾ [سورة الإسراء: ٣٣]

**د کلمو معنا**

وَلاَ تَقْتُلُواْ: او تاسې مه وژنئ.

النَّفْسَ الَّتِي: هغه نفس چې.

إِلاَّ بِالحَقِّ: مګر په حق سره (چې قصاص،رجم او ارتداد دی).

وَمَن قُتِلَ مَظْلُومًا: او څوک چې مظلوم (په ظلم) ووژل شي.

لِوَلِيِّهِ: د وژل شوي د وارث لپاره.

سُلْطَانًا: زور او برلاسي.

فَلاَ يُسْرِف: اسراف دې نه کوي، یعنی له وژونکي پرته دې بل څوک نه وژني.

مَنْصُورًا: مرسته کړې شوی.

**ژباړه:** او مه وژنئ تاسې هغه نفس چې الله يې وژل حرام کړي دي مګر په حق سره يې وژلی شئ او څوک چې مظلوم ووژل شو نو موږ يې وارث ته د غچ (بدل) اخيستلو قوت او توان ورکړی دی، نو په وژنه کې دې تېری او اسراف نه کوی، بيشکه له وارث سره کومک شوی دی.

**تفسیر**

**۱ـ د آیت شرح او څېړنه**

دا مبارک آيت چې د (اسراء) سورت ۳۳ آیت دی د یو لړ الهي منهیاتو په ترڅ کې راغلی دی چې د هغو له جملې څخه له الله تعالی سره شریک نیول، د مور او پلار آزارول، د اسراف او تبذیر څخه ځان ژغورل، د بیوزلی او تنګ لاسی له ویرې د اولادونو وژنه، له زنا او بی حیایۍ څخه لرې والی، د یتیم د مال خوړل او په پای کې د تکبر، غرور او ځان ښودلو څخه ځان ساتل.

اما د پاملرنې وړ ټکی دا دی چې د نفس له وژلو څخه دوه ځله او په بیلابېلو بڼو منع راغلې ده.

د لوست له آیت څخه دوه آیته وړاندې داسې راغلي دي: ﴿وَلاَ تَقْتُلُواْ أَوْلادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلاقٍ﴾ یعنې: خپل اولاد د فقر او بیوزلۍ له ویرې مه وژنئ، یعنې د بې ګناه نفس وژنه مه کوئ، بیا وروسته له زنا او بې حیايئ څخه منع راغلې ده او بیا په هغه پسې سمدلاسه د نفس د وژنې مسئله او د هغه حرمت وروسته له خاصې یادونې دویم ځل په عام ډول یادونه شوې ده چې دویم ځلي ټینګار په خپله دا څرګندوی چې د انسان وژنه ډېره لویه ګناه ده، ځکه اسلام د انسان وجود ته داسې ګوري چې ګواګې دا یوه بنا(تعمیر) ده چې د الله تعالی له خوا جوړه شوې ده نو هیچا ته اجازه نشته چې دا تعمیر ونړوي او ړنګ يې کړي مګر دا چې د هغه اجازه یې لاس ته راوړې وي.

﴿وَلاَ تَقْتُلُواْ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّهُ إِلاَّ بِالْحَقِّ﴾ په دې مبارک آیت کې له نهی څخه سربیره د بې ګناه نفس د وژنې په حرمت هم تصریح شوې ده، نو هر کله چې نهی هم حراموالی دی او ښکاره حرمت هم راغلی نو ګواګې دوه ځلې یې په حرمت ټینګار او تاکید شوی دی په دې وجه په هغه حدیث کې چې بیهقی او نسايي او نورو محدثینو له پیغمبرﷺ څخه نقل کړي: چې د مسلمان د وژنې ګناه د ټولې نړۍ له نړولو څخه لویه ګڼل شویده.

د الله رسولﷺ وفرمایل: "لَزَوَالُ الدُّنيا أَهْوَنُ على الله مِن قتلِ رجل مسلم"[۱]. **ژباړه:** د ټولې نړۍ له منځه تلل د الله په وړاندې د مسلمان له وژنې څخه ډېره بې ارزښته ده؛ یعنی که یو تن ټوله نړۍ ونړوي او خرابه یې کړي دا د یو مسلمان له وژنې څخه ډېره کمه ده.

نو د همدې ټینګار پر اساس و چې حضرت ابن عباسرضي الله عنه به پر دې فتوی ورکوله چې د مسلمان د قصدي او عمدي وژونکي توبه هیڅکله هم نه قبلیږي او هغه به د تل لپاره په اور کې سوځیږي.

(إلا بالحق) په (لا تقتلوا) پورې اړه لري او دا له عامو حالتونو څخه استثناء ده، یعنی په هیڅ حالت د حالتونو کې هغه مسلمان نفس چې الله تعالی یې وژنه حرامه کړې ده مه وژنئ مګر دا چې  د داسې څه مرتکب شوی وي چې د ده وژنه مباح کوي، د "إلا بالحق" توضیح او تفسیر په هغه حدیث کې چې بخاري او مسلم نقل کړی راغلی دی چې رسول

---

۱ – سنن نسائی.

اللهﷺ فرمايلي دي: "لا يَحِلُّ دَمُ امرئ مسلم يشهدُ أَن لا إِله إِلا الله وأني رسول الله، إِلا باحدى ثلاث: الثَّيِّبُ الزَّاني، والنّفْسُ بالنَّفْسِ، والتَّارِكُ لدينِهِ، المفارقُ للجمَاعَةِ"[١]. يعني: د هغه مسلمان د وينې تويېدنه چې د الله په وحدانيت او د رسول عليه السلام په رسالت ګواهي ورکوي روا نده مګر په ارتکاب د يو له دريو شيانو: د نفس وژنه(چې په قصدي توګه وي)، زنا کول د محصنتوب په حالت کې، يعنی چې زاني نکاح کړې وي اوبل د دين پرېښودونکی(مرتد)کوم چې د مسلمانانو له ډلې څخه جلا شوی وي.

دلته دا خبره د يادولو وړ ده چې د کافر وژنه هم په هغه صورت کې، چې محارب نه وي، يعنی د مسلمانانو پر ضد د جنګ په صف کې ولاړ نه وي، د همدې مبارک آيت په حکم سره روا نه ده، ځکه په آيت کې د اسلام قيد نه دی ياد شوی بلکې نفس مطلق ذکرشوی دی، نو هغه کافران چې له مسلمانانو سره ژمن(معاهد) دي يا هغه کافران چې د مسلمانانو په سيمو کې ژوند کوي (ذميين) يا هغه کسان چې د ويزې او پاسپورټ د اجازې له لارې اسلامي هيوادونو ته سفر کوي، د دې ډول خلکو وژنه روا نه ده. اسلام د وينو بهولو او وژلو دين نه دی، بلکې د امن او رحمت دين دی او يوازې د هغو کافرانو د وژلو اجازه ورکوي چې د اسلام د دين د دعوت د خپرېدو مخه نيسي او جنګ ته پرسولې ترجيح ورکوي.

﴿وَمَن قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَانًا﴾ د دې مبارک آيت دا برخه موږ ته دا را په ګوته کوي چې د اسلام سپېڅلی دين د خلکو له وينو څخه په ټوله معنا داسې ساتنه کوي لکه څنګه چې د خلکو د مالونو عزت او حيثيت څخه ساتنه کوي. اسلام له يوې خوا د خلکو په زړونو کې د اخروي جزا ويره پيدا کوي او فرمايي: ﴿مَن قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا﴾ (المائده/٣٢). **ژباړه:** څوک چې يو نفس پرته له بدل يا فساد نه په ځمکه کې وژني نو لکه چې ټول خلک يې وژلي وي.

ترڅو خلک د وينو تويېدو د اخروي جزا په لويوالی وپوهېږي او د داسې جرم له ارتکاب څخه لاس واخلي، له بلې خوا يې قاتل ته سخته دنيوی سزا وټاکله چې هغه قصاص دی، ځکه که چيرې شيطان هغه تېر باسي او له آخرت څخه يې غافله کړي نو له دنيوي سزا څخه به وويرېږي او د خلکو وينې به و نه بهوي، او د مبارک آيت دا برخه همدې دنيوي

---

[١] – صحيح البخاری، کتاب الديات باب قول الله تعالى أن النفس بالنفس.

سزا ته اشاره کوي، فرمايي څوک چې په مظلومه توګه ووژل شي يعنی پرته له داسې عمل کولو چې د ده د وژلو لامل وي نو موږ د ده د ولي او د ده د وينو وارث ته برلاسي او قدرت ورکړی دی. له ولي څخه هغه څوک مراد دی چې د وژل شوي د وينو بدله غواړي لکه پلار يې زوی يا ورور يې او يا د نږدې خپلوانو څخه يې کومٍ بل تن. او په هغه صورت کې چې وژل شوی کس هيڅ ولي ونه لري، نومسلمان حاکم د هغه ولي ګڼل کيږي او د سلطان څخه هغه قوت مراد دی چې اسلامي شريعت د وژل شوي ولي ته وربښلی دی په داسې توګه چې هغه ته يې په يو له دريو شيانو عام او تام اختيار ورکړی دی: يا له وژونکي څخه بدل (قصاص) يا د وينې بيه(ديت) يا عفو او بښنه. خرنګه چې شريعت د وژل شوي لوري ته زياته پاملرنه لري نو ځکه څوک د ده د مطلقی آزادۍ او خپلواکۍ مخه نشي نيولی، البته داسې نصيحت ورته کولای شي چې د قصاص په ځای عفوه غوره کړي يا ديت واخلي خو زور پرې نشي کولای.

﴿فَلاَ يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ إِنَّهُ كَانَ مَنْصُورًا﴾ د مبارک آيت دا وروستنۍ برخه د وژل شوي وارث او ولي ته داسې ارشاد کوي چې هرکله اسلامي شريعت ده ته دا قوت ورکړی او د ده په څنګ کې د ده د حق ورکولو لپاره دريدلی دی نو په وارث هم لازمه ده چې د ټاکلو پولو څخه تيری ونه کړي مثلاً دوه تنه د يو تن په بدل کې مړه نه کړي يا له قاتل پرته بل کوم خپلوان يې د قصاص لپاره غوره نه کړي يا وژونکی له قصاصه وروسته مثله نه کړي يعنی د بدن غړي يې پرې نه کړي. له اسلام نه مخکې د جاهليت له عادتونو څخه دا هم و چې په وژونکي سربيره به يې د هغه د کورنۍ نورغړي هم وژل او يا دا چې وژونکی به د لوړې او شريفې کورنۍ څخه نه و نو دوی به دا وژونکی پريښود، د هغه له قوم او ټبر څخه به يې بل تن چې د وژل شوي سره به په رتبه کې مساوي و هغه به يې واژه، خو په اسلام کې دا ټول په وژنه کې اسراف او تيری ګڼل شوی او منع دی.

د ﴿ إِنَّهُ كَانَ مَنْصُورًا﴾ جمله په حقيقت کې په وژنه کې له اسراف څخه په منع تعليل او استدلال دی. او د (إنه) ضمير د وژل شوي ولي ته راجع دی، يعنی په وژنه کې دې دا ولي اسراف او تيری نه کوي ځکه الله تعالی د هغه سره د خپل شريعت له لارې مرسته کړيده او د مسلمانانو حاکم يې ورته د مرستندوی په توګه ټاکلی دی.

شلم لوست

د تېر لوست پاتې برخه

# د انسان د وينو تويولو حرمت

**په مبارک آيت کې غور او سوچ**

د لوست مبارک آيت لکه څنګه چې يو شمير مفسرين فرمايي، لومړنی آيت دی چې د قتل په هکله نازل شوی دی. هرکله چې انسان په هغه کې ژور فکر او نظر واچوي، نو ډيرې لويې چارې به پکې ومومي. په لومړي قدم کې د هغه عمل له ترسره کولو نه په ډيرشدت او ټينګار سره منع راغلې ده چې د لويو ګناهونو له جملې څخه ګڼل کيږي او د الله د قهر او غوسې لامل ګرځي چې هغه د بې ګناه نفس وژنه ده او په صراحت سره يې په اړه په بل آيت داسې فرمايلي دي: ﴿وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا﴾ [النساء/۹۳].

**ژباړه:** او هغه څوک چې ووژني مؤمن په قصد سره نو د هغه جزا جهنم دی، هميش به وي په دې کې او غضب کړی دی الله پر هغه او لعنت يې کړی پر هغه او تيار کړی يې دی د هغه لپاره عذاب لوی.

او په بل ځای کې د نفس له وژنې څخه ممانعت د شرك نه د نهې سره يوځای ذکرشوی دی الله تعالی فرمايي: ﴿وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ يَلْقَ أَثَامًا﴾ [الفرقان/۶۸].

**ژباړه:** او(د الله نيک بندګان) هغه کسان دي چې د الله ترڅنګ نور خدايان نه بلې او نه وژني هغه نفس چې پرته له حق نه يې وژل الله تعالی حرام کړي دي.

همدارنګه په دې هکله د رسول اللهﷺ په احاديثو کې هم منع راغلې ده، په هغه حديث کې چې بخاري او مسلم دواړو بيان کړی دی د الله رسولﷺ د قيامت په ورځ د خلکو په منځ کې لومړنی الهي فيصله او پريکړه د وژنې او وينې تويونې ټاکلې ده او داسې فرمايي: "أَوَّل مَا يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ يَوْمَ القِيَامَةِ فِي الدِّمَاء" [۱]. يعنې: د قيامت په ورځ لومړنی شی چې د هغه په هکله فيصله کيږي هغه د وينې تويونې فيصله ده.

---

[۱] – صحيح البخاری، کتاب الديات.

په بل حدیث کې راځي: "لَوْ أَنَّ أَهْلَ السَّمَاءِ وَأَهْلَ الأَرْضِ اشْتَرَكُوا فِي دَمٍ مُؤْمِنٍ لَأَكَبَّهُمُ اللهُ فِي النَّارِ"[١]. یعنی: که چیرې د آسمانونو او ځمکې خلك د یوه مسلمان په وژنه کې راټول او شریك شي نو پاك الله به ټول په دوزخ کې واچوي. په دې شدیده منع کې اصلي لامل دا دی چې وژنه د ټولنې د وګړو ترمنځ د کینو، دښمنیو او جګړو خپریدو لامل ګرځي.

دلوست مبارك آیت په دویم قدم کې د وژل شوي د اولیاوو لپاره داسې لارښوونې کوي چې د هغوی نفس آراموي، قهر او غوسه یې کموي او د غچ اخیستلو جذبه یې له منځه وړي، ځکه دوی په ډاډمن زړه په قصاص برلاسي کوي، حکومت او قوت ټول د دوی په واك کې ورکوي.

دا حقیقت دی چې انساني فطرت د خپلوانو د وژلو په صورت کې په ډیره تیزۍ سره د غچ اخیستلو غوښتونکي دي او که داخلي آرامتیا او هوساینه ونه مومي، نو هر ډول ناسمو کړنو ته لاس اچوي، خو کله چې پوه شي چې الله او د الله شریعت او د مسلمانانو حاکم ټول د ده په طرف دي او په آسانۍ سره خپل مقصد ترلاسه کولی شي، نو په خپل سر او خپله خوښه څه کار ته لاس نه اچوي.

### د آیت لنډ مفهوم

په لنډه توګه ویلای شو چې د دې لوست مبارك آیت په ډیر ټینګار سره د نفس له وژلو او وینو تویولو څخه منع کوي، برابره ده چې مسلمان وي یا غیر مسلم خو چې محارب نه وي، البته د مسلمان د وژلو ګناه د نورو په پرتله ډیره زیاته ده، همدا لامل دی چې ډیر فقهاء (پرته له احنافو) په دې آند دي چې مسلمان د اهل ذمه په وړاندې نه قصاص کیږي خو د هغو وژنه روا نده او وژونکی ډیره لویه ګناه ترسره کوي نوځکه د تعزیر او سزا وړ دی، د تاکید او ټینګار قوت له دوو شیانو څخه څرګندیږي یو تعمیم وروسته له تخصیص، یعنی وروسته له ځانګړې منعې څخه چې د اولاد له وژلو څخه په مخکینې آیت کې راغلې ده او په دې دویم آیت کې په عمومي توګه د مطلق نفس له وژلو څخه منع راغلې ده او هم یې په حرمت تصریح شوې ده، البته د عمومي نهې څخه ځینې ځایونه استثناء شوي دي چې د نبي کریمﷺ مبارکو احادیثو هغه معین کړي دي، د دې تر څنګ د ناحقه وژنې په صورت کې اسلامي شریعت د مقتول ورثه پر قاتل برلاسې کوي

---

١ – سنن ترمذی، باب الحکم فی الدماء

چې که وغواړي له هغه څخه قصاص یا د خپل وژل شوي د وینو دیت واخلي یا وروسته له بشپړې برلاسي یې معاف کړي چې دا کار د شریعت ترغیب او تشویق هم له ځانه سره لري، د آیت په وروستۍ برخه کې دې ته اشاره شویده چې هرکله له قاتل څخه د مقتول د غچ اخیستلو په هکله محمدي شریعت د مقتول د ولي مرستندوی دی، نو باید هغه د اسلام له چوکاټ څخه ونه وځي او په داسې کارونو لاس پورې نه کړي چې ناروا او د قرآن په تعبیر سره اسراف او تیری بلل کیږي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي او د لاندینیو دریو موضوعګانو په هکله دې بحث او څیړنه وکړي:

۱ـ د اسلامي قوانینو او احکامو ټولنیزوالی ۲ـ د اسلامي احکامو او قوانینو فطري والی ۳ـ د امن او جګړو په له منځه وړلو کې د اسلام نقش.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

په دې لوست کې ډېر درسونه او عبرتونه نغښتي دي چې یوې ګوښې ته یې اشاره کیږي:

- ❖ د بیوزلۍ یا د شرم او ننګ له ویرې د اولاد وژلو حراموالی لکه چې د جاهلیت په وخت کې به یې خپلې لورګانې وژلې.
- ❖ پرته له حقه د نفس د وژلو حرمت.
- ❖ په دغو صورتونو کې د نفس د وژلو جواز: کله چې څوک قصداً ووژني، دا چې محصن زنا وکړي او یا دا چې له دین څخه وګرځي او د مسلمانانو ډله پریږدي په دې شرط چې په خپله خوښه یې ایمان منلی وي.
- ❖ د دې خبرې اثبات چې اسلامي احکام په بشپړه توګه د انساني فطرت سره برابر دي.
- ❖ حکومتي چارواکو ته دنده سپارل که هغوی قاضیان وي یا حاکمان ترڅو د مقتول له ورثې سره مرسته وکړي.
- ❖ د مقتول د قوم او ټبر د بیځایه تیریو مخه نیول.

## پوښتنې

۱ـ لاندې کلمې وژباړئ:

{وَلَا تَقْتُلُوا} {إِلَّا بِالْحَقِّ} {مَظْلُومًا} {لِوَلِيِّهِ} {سُلْطَانًا} {مَنْصُورًا}

۲ـ د منهیاتو په هکله چې د لوست د مبارك آیت څخه معلومیږي خپل معلومات ولیکئ؟

۳ـ هغه دوه اړخونه چې د نفس د وژنې پر ممانعت دلالت او ټینګار کوي، څرګند کړئ؟

۴ـ د نفس وژنه په کومو حالاتو کې جواز لري؟

۵ـ له قصاص، دیت او عفوې څخه څه مراد دي او کوم یوغوره دی؟

۶ـ دا جمله: ﴿فَلاَ يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ إِنَّهُ كَانَ مَنْصُورًا﴾ تفسیر کړئ؟

۷ـ په مبارك آیت کې له «سلطان» څخه څه مراد دی؟

۸ـ د جاهلیت د خلکو عکس العمل د وژنې په هکله څه و؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لاندې دوو موضوع ګانو څخه یوه موضوع غوره کړي او د هغې په هکله دې یو مخ لنډ تفسیر ولیکي.

۱ـ د قرآن کریم په آیتونوکې د نفس د وژنې ګناه.

۲ـ د نبي کریمﷺ په احادیثو کې د نفس د وژنې ګناه.

# د خلکو پر شتمنیو د تیري حرمت

قال الله تعالی: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلاَّ أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ وَلاَ تَقْتُلُواْ أَنفُسَكُمْ إِنَّ اللّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا﴾ [النساء ۲۹]

**د کلمو معنا**

آمَنُواْ: ایمان مو راوړی، یعنی الله او د هغه رسول رښتینی ګڼئ.

بِالْبَاطِلِ: په ناحقه او ناروا توګه.

تِجَارَةً: پیرودل او پلورل، اخیستل او خرڅول، سوداګري.

عَن تَرَاضٍ: د دواړو خواوو په خوښه.

وَلاَ تَقْتُلُواْ أَنفُسَكُمْ: او خپل ځانونه مه وژنئ، د یو او بل د نفسونو او ارواحو د له منځه وړلو لامل نه شئ.

**ژباړه**

ای مؤمنانو، مالونه مو په خپلو منځونو کې په ناروا مه خورئ، مګر هغه چې د طرفینو د خوښې په رڼا کې د راکړې ورکړې له لیارې وي. او مه وژنئ ځانونه مو، بیشکه الله پاک پر تاسې ډېر مهربان دی.

**تفسیر**

**د آیت شرح او څیړنه**

دا مبارك آیت د قرآني آیتونو څخه یو ډېر عظیم آیت دی چې د بشر لپاره د ژوند کولو اصول او قواعد بیانوي او هغوی ته د دې لارښوونه کوي چې په ټولنه کې باید د ځنګل قانون حاکم نه وي او نه هم خلك د خپلو مالونو په ساتنې کې د ظلم اوتیري ښکارشي او یا په چل او دوکې سره د هغوی مالونه او پانګې لوټ شي. همدارنګه باید د خلکو په نفسونو حمله ونشي او یا یې بیځایه وینې ونه بهیږي. ټول شیان باید محفوظ او ساتلي واوسي، خو یوازې د اړتیاوو او ستونزو د له منځه وړلو لپاره یو شی د تجارت په

نامه(پلورل او پيرودل) چې په هغه کې د خلکو مصلحت دی روا او مباح دی هغه هم په دې شرط چې د دواړو خواوو په رضايت او خوښۍ سره وي.
د يادولو وړ ټکی دا دی دا مبارك آيت د هغو آيتونو په لړ کې ځای لري چې د ژوندانه چارې تنظيموي، لکه د کورنۍ تشکيل، د محرماتو بيانول، د ميراث ويشل او داسې نورمسايل. له دې آيت څخه وړاندې د احکامو آسانۍ، د شرعي قوانينو تخفيف او د انساني فطرت سره د دې احکامو مطابقت او برابرۍ ته اشاره شوې ده چې زموږ د همدې لوست آيت له فطرت سره د اسلام د دين دمطابقت او برابرې لپاره يوه غوره بېلگه ده. ځکه انسان فطرتاً هيچا ته اجازه نه ورکوي چې پرته د هغه له رضا او اجازې د هغه په اړوندو مالونو کې تصرف وکړي. بناء قرآن کريم داسې فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ﴾ مفسرين وايي: د محرماتو يا هغو ښځو يادونه چې نکاح يې پر انسان حرامه ده په مخکني آيت کې او ورپسې آيت کې په ناحقه توگه د خلکو د مالونو د خوړلو د حرمت يادول، پر دې دلالت کوي چې په کومه اندازه د انسان مور، خور او داسې نور پر هغه حرام دي د نورو کسانو مالونه هم په هماغه اندازه پرانسان حرام او ناروا دي. له دې امله که انسان فکر وکړي دا مسئله ډېره حساسه او دقيقه ده. له ﴿ لاَ تَأْكُلُواْ﴾ څخه مراد يوازې خوراك نه دی، بلکې موخه يې ټول ناروا تصرفات دي. هرکله چې په غالبه توگه د يوه شي اخيستل د هغه د خوړلو لپاره وي نو دلته هم د اکل په کلمې سره ورځنې تعبير شوی دی. له ﴿بِالْبَاطِلِ﴾ څخه مراد هر هغه طريقه او لاره ده چې د اسلامي شرعې خلاف وي، لکه سود، جوارې، خيانت، ظلم او داسې نور. د مبارك آيت د دې جملې معنا داسې ده چې يو د بل په مالونو کې د شرعې پر خلاف هيڅ ډول بيځايه تصرفات مه کوئ، ځکه تاسو ايمان غوره کړی دی او هغه د خلکو د حقوقو د مراعاتولو غوښتونکی دی.
﴿إِلاَّ أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ﴾ دا استثناء منقطع استثناء ده، په دې معنا چې تجارت د باطلو مواردو لاندې نه راځي، نو بايد داسې تعبير ونشي چې مه خورئ خپل مالونه په خپلو منځو کې په باطله توگه مگر دا چې د تجارت او يو د بل په رضايت سره وي، بلکې دا جمله په ځانگړې توگه د يو د بل د مالونو په خوړلو سره په حقه او صحيح توگه ښوونه کوي. يعنې که د تجارت په طريقه او د دواړو خواوو د بشپړ رضايت په شرط يو د

بل مالونه وخورئ. دا جواز لري. البته د نورو د مالونو خوړل یا یې تر لاسه کول څه نورې جایزې طریقې هم لري لکه صدقه او خیرات ورکول، میراث وړل، د کار په مقابل کې مزدوري اخیستل او داسې نور، خو کله چې تجارت تر ټولو زیاته دودیزه او پراخه لاره ده، نو ځکه په آیت کې هغه ته اشاره شوې ده.

﴿وَلاَ تَقْتُلُواْ أَنفُسَكُمْ إِنَّ اللّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا﴾ د(**انفسکم**) کلمه په دوو معناوو اخیستلای شو: یو دا چې په خپله د هماغه کس (شخص) نفس مراد دی یعنی خپل ځانونه مه وژنئ او خپل نفسونه مه هلاکوئ.

دویم دا چې له نفس څخه د مسلمان وروړنفس مراد دی چې په منعې او رټنې کې د مبالغې له امله ورڅخه په نفس تعبیر شوی دی، ګواکې د یوه مسلمان وژنه داسې ده لکه چې یو انسان خپل نفس وژلی وي.

مفسرینو د دې مبارك آیت د تفسیرپه ترځ کې دا هم څرګند کړي دي د دې وروستۍ جملې څخه کولای شو دا ومومو، کومو محرماتو ته چې په دې مبارك آیت او مخکنیو آیتونو کې اشاره شوې ده او د دغو ګناهونو ترسره کول، د نفس د قتل سره د ګناه له حیثه برابره ده. یعنی که چیرې تاسې په خپلو کې د یو او بل مالونه په ناحقه وخورئ او د فطرت خلاف نور ګناهونه ترسره کړئ نو ګواکې ځانونه مو هلاك کړي او له منځه مو وړي دي.

د پیغمبرﷺ له صحابه وو څخه یو صحابي د دې مبارك آیت څخه ځانګړی مطلب اخیستی چې د دې آیت د تفسیریوه برخه ګڼل کیږي او د اسلام د مقدس دین آسانې څرګندوي. دا پیښه ډیرو مفسرینو او محدیثینو نقل کړې ده.

ابن کثیر رحمه الله وایي: امام احمد له عمرو بن العاصرضي الله عنه څخه روایت کوي چې هغه وایي: رسولﷺ زما په مشرۍ یوه ډله صحابه یو ځای ته ولیږل، نوتقدیر یوه شپه چې ډیره سړه وه، زه احتلام شوم او د مرګ له ویرې مې غسل ونه کړ، تیمم مې وکړ او صحابه وو ته مې د سهار د لمانځه امامت هم ورکړ او کله چې رسولﷺ ته حاضر شوم، قصه مې ورته وکړه. دوې وفرمایل: ای عمرو! په داسې حال کې چې جنب وې یارانو ته دې لمونځ هم ورکړ؟ عمرو وایي ومې ویل، ای د الله رسوله شپه ډیره سړه وه او زه له مرګه وویریدم، نو د الله دا وینا مې را په یاده کړه چې فرمایي: ﴿وَلاَ تَقْتُلُواْ أَنفُسَكُمْ إِنَّ اللّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا﴾ د الله رسولﷺ وخندل او څه یې ونه ویل.

نو د الله د رسول سکوت د دې نښانه وه چې د عمرو پوهه او مرام له مبارك آيت څخه صحيح و.کولای شو چې دا پيښه د دې آيت د تفسيري مواردو برخه وګڼو. او د ﴿إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا﴾ جمله دلالت په دې کوي چې کومه سلسله احکام په دې آيت کې راغلي دي ټول د الهي حکمتونو پر بنسټ او زموږ په ګټه دي، بايد دا په خپلو ځانونو کوم بوج و نه ګڼو، څرنګه چې الله تعالى پر خپلو بندګانو بی حده مهربانه دی، نو خپل بندګان د دنيا او آخرت له ښيګڼو څخه پرته په بل څه نه مأموروي.

**د نبي کريمﷺ د حديث په رنا کې د مالونو حرمت**

په هغه حديث کې چې صحيح مسلم او يوه ډله لويو محدثينو نقل کړی راغلي دي رسولﷺ په **حجة الوداع** يعنی د ده په وروستني حج کې تر ټولو غوره او شامله خطبه وړاندې کړه او د څو زرو نفرو په لويه ټولنه کې يې په لوړ آواز پوښتنه وکړه ای خلکو تاسې په کومه مياشت کې ياستئ؟ آيا دا مياشت د ذوالحجې مياشت نه ده؟ صحابه کرامو ځواب ورکړ: هو، ده ای د الله رسوله، آيا دا دحرمت ښار(مکه مکرمه) نه دی؟ صحابه کرامو ځواب ورکړ، ولې نه، دی. دريم ځل يې پوښتنه وکړه، تاسو په کومه ورځ کې ياستئ؟ آيا دا د اختر ورځ نه ده؟ صحابه وو ځواب ورکړ، ولې نه ده، ای د الله رسوله، بيا وروسته په داسې حال کې چې له دې پوښتنو مخکې يې د درې شيانو د حرمت او عظمت اندازې ته اشاره کړې وه، ويې ويل: «إِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ حَرَامٌ عَلَيْكُمْ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا فِي بَلَدِكُمْ هَذَا»[1] يعنی: پوه شئ او خبر اوسئ چې ستاسو وينې او ستاسو مالونه پر تاسې حرام دي، لکه د ستاسو د نن ورځې، د دې مياشتې او د دې ځای حرمت، يعنی لکه څنګه چې له يوې خوا د دې مياشې احترام، د دې ورځې احترام او د دې مقدس ځای احترام پر تاسو لازم او اړين دی، په همدغه اندازه د يو او بل د مال او نفس احترام پر تاسو واجب او لازم دی. له بله اړخه لکه څنګه چې له قوانينو څخه تيری او ماتول يې په ځانګړې توګه په دې دری ګونو څيزونو کې حرام او ناروا دي، په هماغه اندازه ستاسو په مالونو او نفسونو کې تيری هم حرام او ناروا دی. رسول الله ﷺ د دې مثال په وړاندې کيدو غوښتل څو د ګناه لويوالی يعنی د مسلمانانو په مالونو او نفسونو تيری د دوی په ذهنونو کې ښه ځای ونيسي او خپل امت دې مهم کار ته متوجه کړي،

---

[1] – صحيح البخاری، کتاب الفتن

څو هیڅکله د یو او بل پانګو او یا نفسونو او یا د یو د بل آبرو او عزت ته(لکه څنګه چې په ځنو روایتونو کې د(اعراضکم) یعنی د عزت او آبرو کلمه هم راغلې ده) د تېري او لاس اوږدولو جرات ونه کړي.

**د آیت لنډ مفهوم**

ذکر شوی آیت د لیکنې د ترتیب په اعتبار د قرآن مجید له سورتونو څخه د څلورم سورت یعنی د نساء د سورت آیت دی. دا سورت مدني سورت دی چې په هغه کې ډېر احکام او ټولنیزې مسئلې بیانیږي. لکه څرنګه چې د دې مبارک آیت اسلوب او طریقه د کورنې ژوند د نظم او ترتیب، حل او حرمت په هکله ده او تر ټولو ارزښتناکه یې هغه موضوع ده چې په دې آیت کې ورته اشاره شوې ده، یعنی د مالونو او نفسونو حرمت.

دا مبارک آیت د ایمان څښتنانو ته خطاب کوي چې ای مؤمنانو، آسماني حکم ستاسو لپاره دا دی چې خپل مالونه په خپلو کې په ناروا طریقو لکه سود، جواري، رشوت، غلا، ظلم، دوکو او داسې نورو طریقو مه خورئ، البته که غواړئ چې د مالونو د حاصلولو سمه لاره او طریقه ومومئ نوتاسو ته د داسې تجارت لارښوونه کوم چې له چل او دوکې څخه پاک وي او هغه داسې تجارت دی چې د دواړو خواوو په عام او تام رضایت ترسره شوی وي.

د دې تر څنګ تاسو ته الهي امر دا دی چې نفس په ناحقه مه وژنئ، که ستاسو خپل نفسونه وي او یا د نورو مسلمانانو نفسونه. ځکه د مسلمان وینه، د مسلمان مال، د مسلمان عزت او آبرو ټول په اسلامي ټولنه کې باید ساتلي او محفوظ وي او که کوم سړی له دې اوامرو څخه سرغړونه وکړي نو سزا به یې هغه وي چې ورپسې آیت یې څرګندونه کړې ده: ﴿وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ عُدْوَانًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا وَكَانَ ذَلِكَ عَلَى اللّهِ يَسِيرًا﴾ (النساء/۳۰).

**ژباړه:** او هر څوک چې د تیري او تجاوز له مخې دا ناوړه کار وکړي نو ډېر ژر به یې اور ته ننباسو او دا کار الله پاک ته ډیر آسان دی.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د هغو ستونزو او کړاوونو په هکله، چې زموږ ټولنه ورسره د دې لوست د آیتونو او نبوي احادیثو د لارښوونو د نه عملي کولو له امله مخامخ شوې ده، له یو بل سره د محترم استاد په مرسته بحث او خبرې وکړي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

په دې لوست کې ډېر درسونه او عبرتونه نغښتي دي چې يوې ګوښې ته يې اشاره کيږي:

❖ د مسلمانانو د مالونو څخه په ناسمه توګه د ګټې اخيستلو حرمت چې په هرې طريقې سره وي.

❖ د تجارت اباحت، روا والی او هغه ته د خلکو هڅول او تشويقول.

❖ پر هغو کسانو باندې رد کول چې د ناپوهۍ او توکل په پلمه کسب او کار منع ګڼي.

❖ په بيع او تجارت کې د رضايت او خيار د مسئلې ثابتول.

❖ د مسلمان لپاره د نفس د وژنې حرمت، که هغه خپل نفس وژنه يا په ناحقه د بل نفس وژنه وي؛ ځکه مسلمانان ټول د يوه بدن په څير دي.

❖ د قاتلانو او مال لوټوونکو لپاره د شديد او دردناک عذاب وعيد.

**پوښتنې**

۱ـ لاندې کلمې وژباړئ:

{بالباطل} {تجارة} {عن تراض} {و لا تقتلوا أنفسكم}

۲ـ د مالونو د خوړلو د څو بېلګو چې د باطلو په مفهوم کې داخلې دي د نومونو يادونه وکړئ.

۳ـ د﴿إِلاَّ أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ﴾ جمله تفسير او تشريح کړئ.

۴ـ د دې مبارک آيت مخکينی او وروستنی آيت څه مسئلې بيانوي؟

۵ـ د ښځو د حرمت، د احکامو د آسانی او فطرت په اړوند د آيت د ربط په هکله څه پوهيږئ؟

۶ـ له ﴿أَنْفُسَكُمْ﴾ څخه څه مراد دی او توجيه يې څرنګه ده؟

۷ـ د نفس او مال د حرمت لويوالی په حديث شريف کې څرنګه بيان شوی دی؟

۸ـ په معامله کې د اسلام علماء د بشپړ رضايت نښه څه شی ګڼي؟

**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د دې لوست لنډيز په يو مخ کې د آيتونو او احاديثو په رڼا کې وليکي او په مختصره توګه دې وژباړي.

دوه ویشتم لوست

# ګډ ژوندون او خواخوږي

**قال الله تعالی:** ﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ ...﴾ [الفتح: ۲۹]

**د کلمو معنا**

| | |
|---|---|
| {وَالَّذِينَ مَعَهُ} | او کوم کسان چې له هغه سره ملګري دي. |
| {أَشِدَّاءُ} | ډېر سخت. |
| {رُحَمَاءُ} | رحم کوونکي او خواخوږي. |
| {تَرَاهُمْ} | ته هغوی وینې. |
| {رُكَّعًا سُجَّدًا } | درکوع او سجدې په حالت کې. |
| {يَبْتَغُونَ} | غواړي، په لټه او هڅه کې دي. |
| {فَضْلًا} | مهرباني، اجر او ثواب. |
| {وَرِضْوَانًا} | او رضا، خوښي. |
| {سِيمَاهُم} | نښې او علامې د هغوی. |

**ژباړه**

محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دی ، او کوم کسان چې له هغه سره ملګري دي هغوی پرکافرانو سخت او په خپلو مینځو کې خواخوږي دي. ته چې کله هغوی ګورې په رکوع او سجده، او د الله د فضل او د هغه د رضا په طلب کې يې بوخت مومې. د سجدو نښې نښانې د هغو پر وچولیو موجودې دي چې په هغې سره هغوی بیل پیژندل کیږي.

**تفسير**

**د آیت شرح او څېړنه**

﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾ دا مبارک آیت د (الفتح) د سورت وروستنی مبارک آیت دی چې په ټولیزه توګه او بیا په ځانګړې ډول وروستی نیمایي

برخه يې د مؤمنانو د حالاتو او صفاتو بيانوونکې ده. له دې آيت څخه په وړاندې آيتونو کې د رسول اللهﷺ نه د مسلمانانو د بې ساري اطاعت او فرمانبردارۍ، کوم چې د بيعت الرضوان پر مهال څرګند شو او له دې مطيع امت نه د رضايت اعلان او يادونه شوې ده. وروسته بيا د مسلمانانو د ځلاندې راتلونکې وړاندوينه داسې شوې چې ډېر ژر به دوی سره له وياړه مکې مکرمې ته ننوځي او څرنګه چې د دوی دين د هدايت دين دی نو پر ټولو اديانو به غالب شي.
په پای کې دغه مبارک آيت د مؤمنانو اوصاف بيانوي چې دوی څه ډول کسان دي او په تورات، انجيل او قرآن کې څرنګه تعريف شوي دي، الله تعالی فرمايي: ﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾ لومړۍ جمله د الله تعالی د پيغمبرﷺ لپاره چې د دې امت قائد او لارښود دی جميل وصف بلل کيږي. له دې څخه به بل لوی وصف څه شی وي چې د عالميانو باچا په بشپړ ټينګار سره دا فرمايي: محمد د الله رسول دی، يعنی داسې ونه ګڼئ چې محمد يوازې يو نابغه او يا کوم پوه او عالم دی، بلکې د هغه مقام(له دې صفاتوسربېره) له دوی څخه ډېر لوړ او اوچت دی. هغه د الله تعالی رالېږل شوی او په ځمکه کې د هغه ځانګړی استازی دی. او د جميل وصف دويمه جمله د پيغمبرﷺامت دی چې دوی د کفر، الحاد او طغيان په مقابل کې ډېر سخت او شديد دي، خو د مؤمنانو پر وړاندې که هغوی له هر قوم، قبيلې، توکم، ژبې او رنګ څخه وي ډېر خواخوږي، نرم او مهربانه وي، ابن عباس رضي الله عنه فرمايلي دي: له ﴿وَالَّذِينَ مَعَهُ﴾ څخه مراد هغه کسان دي چې په حديبيې کې حاضر وو، خو د جمهورو مفسرينو نظر دا دی چې مراد ترې ټول اصحاب کرام دي، دلته د مسلمانانو د لومړني نسل نه د نمونې په ډول يادونه شوې ده ځکه ټول امت له هغوی څخه پيروي کړې ده او د هغوی پر پله روان دي نو دا صفات لومړی په دوی کې او بيا په ټول امت کې څرګندیږي.
﴿تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا﴾ د مبارک آيت دا برخه د پيغمبرﷺ د ريښتينو يارانو د مواصفاتو بل اړخ ته اشاره کوي، يعنی سره له دې چې دوی د کفر، الحاد او طغيان په وړاندې ډېر سخت او شديد دي او د مؤمنانو پر وړاندې نرم او مهربانه دي، دوی هر وخت د الله تعالی په عبادت کې بوخت او مشغول وي د رکوع او سجدې له حالت نه مراد د لمونځ ادا کول دي، د عربي ژبې قواعدو ته په کتلو سره د(تراهم) صيغه د مضارع صيغه ده چې په دوام او استمرار دلالت کوي او پر لمانځه د مداومت او پابندۍ پايله ترې اخيستل

کیږي په دې معنا چې خپل لمونځونه په پابندۍ سره ادا کوي او له فرایضو سربېره نوافل هم ادا کوي. دلته یوه پوښتنه پیدا کیږي چې له دې نرمۍ، خواخوږۍ، شدت، رکوع او سجدې نه موخه او هدف څه شی دی او دوی ولې دغه کارونه ترسره کوي؟ نو د دې پوښتنې ځواب په همدې آیت کې راغلی دی او هغه دا دی چې ﴿يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا﴾ هغوی په خپلو ټولو کړنو او تحرکاتو سره د الله د فضل، ثواب، رضا او خوښۍ غوښتونکي دي.

﴿سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ﴾ سیما د یو شي نښې او علامې ته ویل کیږي. له وجوه څخه مراد وچولي او یا مطلق مخونه دي. کله چې یوانسان ډېرزیات لمونځونه ادا کوي نو الله تعالی یې ځېرې ته یوه ځانګړې رڼا ورپه برخه کوي او کله هم د لمونځ کوونکي په وچولي کې د د زیاتو سجدو له امله یوه ځانګړې نښه ښکندیږي، نو مفسرین کرام وایي چې کېدای شي له دې دوو رایو څخه یوه مراد وي، خو که څوک وغواړي چې په خپل وچولي کې قصدا داسې نښه راپیداکړي چې د هغه د سجدو پر کثرت دلالت وکړي نو له دې کار څخه په شریعت کې منع راغلې ده، ځکه دا کار د ریا او ځان ښودنې څرګندونه کوي چې په دې سره د انسان د اعمالو اجر او ثواب له منځه ځي، په هر حال که د مبارک آیت اشاره د اصحاب کرامو په وچولي کې هماغې ظاهري نښې ته وي نو بیاهم مخکینۍ جملې دا څرګنده کړه چې د هغوی موخه او مقصد په خپلو ټولو کړنو سره د الله تعالی د ثواب، رضا او خوښۍ تر لاسه کول و.

**ښېګڼه او خواخوږي د آیتونو په رڼا کې**

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَنْ يَرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ...﴾ (المائده: ۵۴).

ژباړه: ای مؤمنانو که له تاسې نه څوک له خپل دین نه واوړي (نو وادې وړي) الله به نور ډېر داسې خلک پیداکړي چې الله ته ګران وي او الله هغوی ته ګران وي چې له مؤمنانو سره به نرمي کوي او پرکافرانو سختي، د الله په لاره کې به هلې ځلې وکړي اود هیڅ ملامتوونکي له پېړې اچولو څخه به نه ویریږي. په دې مبارک آیت کې الله تعالی په څرګند ډول راښیي چې څوک د مسلمانانو پر وړاندې له نرمۍ او مهربانۍ او د کافرانو پر وړاندې له سختۍ او غوسې څخه کار اخلي نو دوي د الله سره رښتینې محبت لري او د دغه محبت نښه دا ده چې الله هم

دوی خوښوي، ځکه بنده که هر څومره د الله تعالی د محبت دعوا وکړي  خو که دغه دعوی د الله له لوري تایید نشي او هغه ورسره د محبت ځرګندونه ونکړی نو دعوا یې بې بنسټه ده.
که څه هم د مفسرینو په وینا د دې آیت د نازلیدو لومړی لامل او مصداق حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه او هغه کسان دي چې د ده ترمشرۍ لاندې د مرتدینو سره وجنګیدل او دا مبارك آیت د قرآن د غیبي خبرونو او معجزو څخه ګڼل کیږي ځکه د کوم شي خبریې چې ورکړی ؤ همغه پیښ شو او د رسول اللهﷺ له رحلت وروسته یوه ډله خلك له دین څخه وګرځیدل او مرتد شول. د مسلمانانو لومړي خلیفه د خپلو یارانو په مرسته له دوی سره جهاد وکړ خو په قرآني الفاظو کې د لفظ عمومیت ته اعتبار او ارزښت ورکول کیږي، نو دا مبارك آیت پر دې دلالت کوي چې الله تعالی د خپلو بندګانو په وجود کې درې صفتونه خوښوي، یو دا چې د مومنانو پر وړاندې نرم خویه او مهربانه وي او د کافرانو په مقابل کې ډیر کلك او شدید. دویم دا چې د الله په لاره کې جهاد وکړي. دریم دا چې د حق په پیروۍ کې د هیڅ ملامتوونکي له ملامتیا څخه ونه ویریږي.
﴿وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ...﴾ (الحشر: ۹).
دا مبارك آیت د نبي کریمﷺ د انصارو یعني د مدینې منورې د خلکو په ستاینه کې راغلی دی او د هغوی د دوستۍ او مهربانۍ وصف، بلکې د هغوی سربښندنې او ځان تیریدنې د تعظیم او تمجید وړ ګرځوي او فرمایي: او هرڅه چې هغو ته ورکړل شي د هغو څه اړتیا قدرې هم دوی په خپلو زړونو کې نه احساسوي او پرخپل ځان باندې نوروته ترجیح ورکوي اګر که په خپله محتاج هم وي.
قرآنکریم داسې صفتونو ته په درنه سترګه ګوري او ټول دې ته ترغیب او تشویقوي څو په خپله او هم د اسلامی ټولنې په نورو غړیو کې دا صفتونه ژوندي او پیدا کړي او خلك سوله ایز ژوند، نرمی او ښو اخلاقو ته راوبولي، پرته له شکه د الله د رسولﷺ له خوا یوه روزله شوې ډله داسې وه چې قرآنکریم یې کیسه داسې کوي: دوی له حده زیات په خپلو منځونو کې مهربانه وو په هره نوې لیدنه کې به یې یو او بل په غیږ کې نیول سره له دې چې په ځینو چارو کې دوی د نظر او رأیې اختلاف هم درلود خو یو او بل ته په احترام قایل وو حاکمانو په رعیت رحم او شفقت درلود او رعیت حکومت ته تابع او فرمان برداره ؤ، نومسلمانان باید په هر وخت او زمانه کې همداسې وي.

**د آيت لنډ مفهوم**

په ذکر شوي مبارك آيت کې د رسول اللهﷺ ستاينه او همدارنګه د ده د رښتينو پيروانو تعريف او ستاينه شوې ده. په لومړي پړاو کې د پيغمبرانو د سردار حضرت محمدﷺ رسالت ثابتوي او په دويم پړاو کې څو شيانو ته اشاره کوي: لومړی دا چې د محمدﷺ پيروان او صحابه د کافرانو پر وړاندې د دوی د کفر پر اساس ډير غليظ، شديد او سخت خويه وو، نه د ذاتي او شخصي دښمنۍ پر اساس، خو د مؤمنو او ديندارو وروڼو پر وړاندې مهربانه او نرم خويه وو. دويم دا چې دوی په داسې شي التزام او پابندي لري چې دوی دې نيکو صفتونو ته هڅوي او هغه د لمانځه اداء کول دي، د پاك قرآن د وينا پربنسټ ﴿إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ﴾ [العنكبوت: ۴۵] لمونځ انسان له ټولو بی حياييو او ناوړتياوو څخه منع کوي او پرته له شکه بدخويي او سختي د مسلمانانو په وړاندې يو ناوړه او بد عمل دی چې د حقيقي لمانځه په واسطه مسلمان ورځنې ژغورل کيږي.

دريم دا چې دوی د اخلاص خاوندان دي، يعنې په خپلو کړو وړو سره د الله له رضا پرته بل هيڅ موخه او هدف نه لري. څلورم دا چې د پاکۍ او ايمان نښې د دوی له سر او مخ څخه روښانه څرګنديږي چې خلك يې په سمه توګه پيژندلی شي او د دوی له لوري امن او ډاډ احساسوي.

دا مبارك آيت د لومړنيو مسلمانانو د صفتونو په بيانولو او د مسلمانانو پر وړاندې د دوی په نرمۍ او مهربانۍ باندې د آسماني تاييد سره په اسلامي ټولنه کې د خواخوږۍ، ګډ ژوند او نرمۍ بنسټونه ږدي او پر دې اساس چې اسلامي امت د حقيقت د لارې د مخکښانو په پيروۍ مکلف دی ګواکي ټول دې نرمۍ ته رابلي او دا د هغوی ديني وجيبه ګڼي نو مسلمانان بايد په خپلو کې سوله ايز ژوند ولري، جغرافيوي پولې د مذهبونو او نظريو اختلاف اويا د ژبو، قوم او رنګ اختلاف بايد د مينې او ايماني محبت او ښه نيت او په خپل منځ کې د نيکې معاملې خنډ ونه ګرځي.

**فعاليت**

زده کوونکي دې په ټولګي کې د مسلمانانو تر منځ د نرمۍ او ګډ ژوند ګټې او د بې ځايه سختۍ او تشدد زيانونه په خپلو کې تر بحث او څيړنې لاندې ونيسي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

په پورتني آیت کې ډېرې ګټې او لارښوونې شتون لري چې ځينې يې په لاندې ډول دي.

- د حضرت محمدﷺ د نبوت او رسالت اثبات او تاييد.
- د رسول اللهﷺ او د هغه د يارانو د دې صفت بيانول چې هغه د مسلمانانو پر وړاندې نرمي کول او د کفارو پر وړاندې شدت کول دي.
- د ګډ ژوند، ښېګڼې او خواخوږي د روحيې په لور د مسلمانانو ترغيب او تشويق کول.
- په خشوع، خضوع، رکوع او سجود سره د لمانځه د فضيلت بيانول.
- په کړنو، اعمالو او د الله د رضا په حاصلولو کې د اخلاص فضيلت.
- د اصحاب کرامو د مقام او مرتبې لوړوالی او په تورات او انجيل کې د هغوی د اوصافو يادونه.

**پوښتنې**

١- لاندې کلمات وژباړئ.

{ أَشِدَّاءُ }، { رُحَمَاءُ }، { رُكَّعًا سُجَّدًا }، { يَبْتَغُونَ }، { فَضْلًا }، { رِضْوَانًا }، { سِيمَاهُم }.

٢- د ﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ﴾ مبارک آيت د کوم سورت برخه ده؟

٣- په دې آيت کې د صحابه ؤ کرامو څو صفاتو ته اشاره شوې ده؟

٤- قرآن مجيد د رسول الله ﷺ د يارانو د صفاتو په بيانولو سره له مؤمنانو څخه څه غوښتنه کوي؟

٥- د ﴿سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ﴾ جمله تفسير کړئ.

٦- د مسلمانانو دښمنی د کفارو له ذات سره ده که دهغوی له کفري صفاتو سره؟

٧- د دې لوست له ګټو اولارښوونو څخه څلور ګټې بيان کړئ.

**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې په خپله خوښه د لاندينيو دوو موضوعګانو په هکله يوه لنډه مقاله وليکي:

١- په اوسني عصر کې تفاهم او ګډ ژوند ته د اسلامي امت اړتيا.

٢- د قرآن مجيد د آيتونو په رڼا کې د تفاهم او ګډ ژوندون فضيلت او ارزښت.

# په قران کريم کې نمونه ځوانان

**قال الله تعالى:** ﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُمْ بِالْحَقِّ إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى۞ وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُونِهِ إِلَهًا لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا﴾ [الكهف: ١٣- ١٤]

**د کلمو معنا**

| | |
|---|---|
| {نَبَأَهُم} | د دوی عجيبه خبر |
| {بِالْحَقِّ} | په رښتينولی او باور سره |
| {فِتْيَةٌ} | ځوانان وو |
| {زِدْنَاهُمْ هُدًى} | دوی ته مو هدايت زيات کړ |
| {وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ} | محکم مو کړ زړونه د دوی |
| {لَنْ نَدْعُوَ} | هيڅکله نه راغواړو او عبادت نکوو |
| {شَطَطًا} | بيکاره او دروغ خبره |

**ژباړه**

موږ د هغو اصلي قصه تاته (ای محمده) اوروو هغوی ځوانه زلميان وو چې پرخپل پروردګار يې ايمان راوړی ؤ او موږ هغو ته په هدايت کې زياتوالی ورپه برخه کړ. موږ د هغو زړونه په هغه وخت کې محکم کړل چې کله هغوی پاځيدل او اعلان يې وکړ چې زموږ رب فقط همغه ذات دی چې د آسمانونو او ځمکې رب دی موږ به له هغه پرته نور کوم معبودان ونه بلو که موږ دغسې وکړو نو بيخي بابيزه خبره به مو کړې وي.

**تفسير**

**د آيتونو شرح او څېړنه**

ياد شوي مبارك آيتونه د (الكهف) له سورت څخه دي چې څلور ډيرې لويې پيښې رانغاړي: لومړی د کهف د اصحابو کيسه . دويم د هغو خلکو کيسه چې الله ورته دوه سمسور بڼونه

وربښلي وو. درېيم د حضرت موسی‎ﷺ کيسه د الله دنيک بنده سره او څلورم د ذوالقرنين کيسه. خو د دې سورت ډېر آيتونه د کهف د ملګرو په کيسې پورې تړاو لري، چې د ايمان د پياوړتيا يوه بيلګه ده او د دنيا پر مال او ښايست آخرت ته ترجيح ورکوي. د دې کيسې په اتلانو کې د هغو ځوانانو لپاره غوره لارښوونه او اقتداء ده چې د خپلې عقيدې او ايمان لپاره د ظلم او زياتي پر وړاندې درېږي او له يو الله پرته د بل هيچا څخه ويره نه لري.

﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُمْ بِالْحَقِّ إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى﴾ وروسته له دې چې په څو وړاندينيو آيتونو کې د کهف د ملګرو کيسې ته لنډه اشاره کيږي او له دې پيښې څخه د الله د يوې عجيبې نښې په عنوان يادونه کيږي، دادي په دې مبارك آيت کې په مفصله توګه د کهف د ملګرو کيسه پيليږي او فرمايي: ﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُمْ بِالْحَقِّ﴾ موږ د دوی زړه وړونکی خبر په رښتيني او حقيقي توګه تا ته ای محمده، بيانوو.

(نبأ) په عربي ژبه کې هغه خبر ته ويل کيږي چې د ستر ارزښت لرونکی وي.

﴿إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى﴾ (فتية) د (فتی) جمع ده، فتی هغه ځوان ته ويل کيږي چې تر او تازه وي يا د ځوانۍ په اوصافو بشپړ وي، نو د مبارك آيت تفسير داسې کيږي: هغوی تنکي ځوانان وو د ځوانۍ په صفتونو ستايل شوي چې په خپل پالونکي الله يې ايمان راوړ او موږ د دوی په ايمان کې زياتوالی راوست، د ايمان له زياتوالي څخه مراد په ايمان ثابت قدم پاتې کيدل او د الله له لوري د نيک عمل په توفيق مشرف کيدل دي.

﴿وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُونِهِ إِلَهًا لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا﴾ (ربط)په عربي کې د يوه شي تړلو ته وايي او په مجازي توګه په مبارك آيت کې د صبر او زغم ورکولو ته ويل کيږي، په دې معنا چې د دوی زړو ته مو د داسې استقامت څخه ډک کړل چې هيڅکله د ظالم پادشاه ويرې اود ښځې، زامنو او ټاټوبې په پريښودلو د دوی قدمونه ونه لړزيدل، البته دا د زړونو تړل او استقامت هغه وخت د دوی په برخه شو چې کله په خپلو پښو ودريدل يعنې ټينګ هوډ يې وکړ او چيغې يې کړې چې ﴿رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ يعنی زموږ پروردګار همغه د اسمانونو او ځمکې پروردګار دی او موږ پرته له هغه بل الله نه پيژنو او له هغه پرته د بل هيڅ معبود لمانځنه نه کوو، ځکه که داسې وکړو نو په حقيقت کې به مو د حق نه لرې خبره ويلې وي ﴿لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا﴾ (شطط) اصلا هغه څه ته

ویل کیږي چې لرې او ناممکنه وي، په دروغو، دوکې او ظلم يې هم اطلاق کیږي او دا ټولې معنا ګانې د مبارک آیت له لفظ څخه مرادیږي.

### د آیتونو د نزول سبب

د کهف د ملګرو د کیسې په اړوند د آیتونو د رالیږلو لامل دا ؤ چې د مکې مشرکانو د یثرب (مدینې) له یهودیانو څخه وغوښتل چې څو دوی ته د داسې څیزونو لارښونه وکړي چې په هغه سره د الله رسول و ارزوي او په دې توګه یې د رسالت صحت او عدم صحت څرګند کړي. یهودو خبر ورکړ چې د دریو شیانو په اړه له ده څخه پوښتنه وکړئ: لومړی دا چې د کهف د ملګرو کیسه څرنګه وه. دویم د ذوالقرنین او دریم د روح په باره کې، که چیرې هغه دوه لومړنیو پوښتنو ته ځواب وویل اود دریمې په هکله یې چُپتیا غوره کړه نو هغه د الله استازی دی. کله چې مشرکانو دا پوښتنې وکړې نو الله تعالی ورته د اصحاب کهف او ذوالقرنین دواړه پیښې د کهف په سورت کې مفصلا بیان کړې. او د روح په هکله آیت نازل شو چې ﴿قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا﴾ [الاسراء : ۸۵] **ژباړه:** ووایه روح یو امردی چې زما الله پورې اړه لري او تاسې ته علم نه دی درکړې شوې مګر ډیرلږ.

### د اصحاب کهف کیسه

د اصحاب کهف کیسه په لنډه توګه لکه څرنګه چې په کابلي تفسیر کې ټوټه ټوټه راغلې ده داسې بیانوو:

وایي چې دا څو رومي تنکي ځوانان وو چې د کوم ظالم او زورور باچا په وخت کې یې ژوند کاوه چې نوم یې ځینو «د قیانوس»یاد کړی دی. دا باچا په بوت لمانځنه کې ډیر غرق ؤ او په ظلم او زیاتي سره یې بوت لمانځنه خوروله، خلکو د ده د جبر او عذاب له ویرې او یا د څو ورځو دنیوي ګټو په خاطر خپل مذهبونه پریښودل اود بوت په عبادت مشغول شول په دې وخت کې څو ځوانان چې د حکومت د لویو کورنیو او چارواکو پورې یې تړاو درلود په دې فکر شول چې د مخلوق د خوشحالۍ په وجه د خالق رضا له لاسه ورکول مناسب کار نه دی نو څرنګه چې د دوی زړونه د ایمان او تقوی اود الله د ویرې څخه ډک وو او الله تعالی دوی ته د صبر، ثبات، توکل او له مجازي خدایانو څخه د بې زارۍ وسه او توان ورکړې وه نو د باچا پر وړاندې یې هم یوه مستانه چیغه وکړه چې ﴿لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُونِهِ إِلَهًا لَقَدْ قُلْنَا إِذًا

شَطَطًا﴾ او په دې توګه يې خپله زړ ورتيا، خپلواکي او عقيده څرګنده کړه او ټول خلک يې حيران کړل، باچا له يوې خوا د دوی پر ځوانی رحم وکړ او له بلې خوا څه چارې او مصلحتونه د دې مانع شول چې دوی سمدستي ووژني نو په دې وجه يې هغوی ته څو ورځې مهلت ورکړ څو په خپلو کارونو کې فکر او غور وکړي، دوی له مشورې وروسته پريکړه وکړه چې په هر حال خطر خو راته متوجه دی او ارومرو د هغه د ظلم او زياتي څخه عاجز او قدمونه مو ښوييږي نو مصلحت دا دی چې د ښار په شا او خوا د کوم غره په غارکې پټ شو او ښارته د راستنيدو لپاره يوه مناسبه موقع ولټوو د خپل وړانديز په ټينګار يې دعا وکړه چې يا الله ستا په ځانګړي رحمت زموږ کارونه سم کړه او موږ ته د کاميابۍ او هدايت لاره وښيه او په پای کې زموږ واړه کارونه سم کړه! همغه وه چې له ښاره ووتل او ښار ته نږدې د يوه غره په يو غار کې پټ شول او په خپلو کې يې يوتن وټاکه چې خپل حالت بدلوي او کله ناکله ښار ته ځي څو خپلې اړتياوې او ضرورتونه له بازاره واخلي اود ښار له حال احوال څخه هم ځان خبر کړي کوم کس چې د دوی له ډلې څخه د دې کار لپاره ټاکل شوی ؤ يوه ورځ يې خبر راوړ چې نن د حکومت جاسوسان په ښار کې زموږ پلټنه کوي او زموږ خپل او خپلوان دې ته اړ باسي چې زموږ پټ ځای هغوته وښيي، په همدې يادونه کې وو چې ناڅا په الهی قدرت پردوی د خوب غلبه راغله او پلټونکو چې هر څومره پلټنه وکړه د دوی پته يې ونه لګوله، ناهيلي شول او له پلټنې څخه لاس په سر شول باچا امر وکړ چې د سرپو(فلز) په تخته د دې ځوانانو نومونه د دوی د کيفيت او احوالو سره يو ځای وليکي او په خزانه کې يې وساتي تر څو راتلونکي نسلونه وپوهيږي چې څو تنه په حيرانوونکې توګه ورک شوي دي ښايې په راتلونکې کې له دوی څخه څه اثر ظاهر شي او کومې عجيبې پيښې ورځنې څرګندې شي. دوی په لمريز حساب پوره درې سوه کاله په همغه غار کې ويده وو چې د سپوږمۍ په حساب نه کاله وربانديې زياتيږي ـ له يوې اوږدې مودې څخه وروسته راجګ شول او په خپلو کې يې يادونه وکړه چې موږ به څومره موده ويده شوي يو؟ ځنو وويل چې يوه يا نيمه ورځ (يعنې ډير لږ) نورو وويل چې په دې هکله خبرې کول فايده نه لري الله پوهيږي چې موږ به څومره وخت ويده شوي وو ـ اوس غوره داده کار وکړو يو تن دې دغه روپۍ له ځانه سره واخلي او ښار ته دې لاړ شي اوله يوه دوکان څخه دې حلال او پاک خواړه راوړي، يو تن روپۍ واخستې، ښار ته ولاړ خو دهغه ښار هر څه يې متغير او نوي ومونډل ـ ښاريانو چې کله هغه سکه وليده حيران شول چې د کوم باچا نوم په هغې ليکل شوی او دا به کوم وخت وي.

خلکو وپتیله چې دې سړي کوم ځای خزانه موندلې ده، پلټنې په دې هکله دوام وموند تردې چې پیښه د باچا حضورته ورسیده، باچا ځیر شو او هغه پخوانۍ تخته چې د څو ځوانانو هویت او د دوی د ورکې تاریخ وربانديې لیکل شوی ؤ او ډیره زمانه ساتل شوې وه نو خپل حضور ته یې وغوښتل او پلټنه یې پیل کړه او بالآخره وپوهیده چې دا هماغه ورکه ډله ده. په هغه وخت کې په ښار کې د ﴿بعث بعد الموت﴾ په هکله بحثونه او مناظرې روانې وې ځینو ویل له مرګه وروسته څوک بیرته نه راژوندي کیږي، ځینو به ویل بعث یوازې روحاني وي نه جسماني، ځینو دواړه منل ـ د وخت باچا چې یو حق پرست او انصاف کوونکی سړی ؤ غوښتل یې چې کومه بیلګه له کومې لورې نه په دې هکله لاس ته راوړي تر څو د خلکو عقل یې په آسانۍ سره ومني نو الله تعالی دا بیلګه دوی ته راولیږله اودا کار ددې لامل شو چې د آخرت څخه انکار کوونکي هم د دې حیرانوونکې پیښې له لیدلو او اوریدلو وروسته د قیامت د ورځې په راتلو ایمان راوړ.

**د آیتونو لنډ مفهوم**

دواړه مبارک آیتونه د هغو ځوانانو په هکله دي چې د بشریت په تاریخ کې د اصحاب کهف په نامه مشهور دي، الله تعالی هغوی د بیلګې په توګه د ټولو مسلمانانو او په ځانګړې توګه د ځوانې طبقې لپاره په خپل سپیڅلي کتاب کې ذکر کړي که چیرې تاسې غواړئ چې په خپل دین ټینګ واوسی، که غواړئ چې حق ته پر باطل ترجیح او غوره والی ورکړئ، که غواړئ د آخرت د لاس ته راوړلو لپاره د ظالمانو او متکبرانو له رټنې او تهدید څخه ونه ویریږئ نو په دې ډله پیاوړو ځوانانو پسې اقتداء وکړئ او پوه شئ چې د عالمیانو د خالق او پالونکي غیبي مرسته به ستاسو سره مل او ملګرې وي بلکې تاسوته به ډیرې لویې ویاړنې در په برخه کړي لکه څرنګه چې د اصحاب کهف ملګروته وربښل شوې وې.

له بلې خوا دا آیتونه اودا کیسه په ټولیزه توګه له مرګ وروسته د ژوندانه واقعي بیلګه وړاندې کوي، د روایتونو پر بنسټ په هغه زمانه کې چې دا پیښه رامنځ ته شوې وه وروسته له مرګه د بیا ژوندي کیدو پدیدې د آخرت څخه انکار کوونکي د شک او شبهې سره مخ کړي وو او یوه ډله خلک یا مطلقاً د ژوندي کیدو څخه منکروو یا یې د دې دعوه کوله چې یوازې روح ژوندی کیږي نه جسم، خو د اصحاب کهف په ویښیدلو سره وروسته له ۳۰۹ کلونو

ځخه دا شك او شبهه له منځه ولاړه او خلكو د سر په سترګو وليدل چې پرته له شكه الله تعالى كولاى شي مړ بدن ته دويم ځلي روح وروبښي او په حركت يې راولي.
دريم شى چې مبارك آيتونه ورته اشاره كوي دا دى چې د مومنانو لپاره هيڅكله له الله سره شريك راوړل د زغملو وړنه دى او واقعي مسلمان نشي كولاى د مشركانو سره هم نظره او هم عقيده واوسي، شرك كاملا باطل دى او په قرآني تعبير سره (شطط) دروغ، ظلم او له حق او حقيقت ځخه لرې ته ويل كيږي.

**په قرآن كريم كې څو نور نمونه ځوانان**

**ابراهيم خليل الله ﵇**

حضرت ابراهيم﵇ د الله پيغمبر ؤ چې د الله په لاركې د سترو ځان ښندنو په خاطر د خليل الله يعني د الله د ځانګړي دوست لقب وركړل شو، هغه د ځوانۍ په منګ كې په بشپړې ميړانې سره داسې كارو ته وكړل، چې د نمونه(مثالي)ځوانانو په ډله كې شميرل كيږي. د اتلولۍ له كارونو ځخه يې يو دا ؤ چې په كوڅه او بازار كې به د ظالم نمرود له ويرې پرته ګرځيده او بتان چې د نمرود او نمروديانو معبودان وو هغه يې باطل او بې بنسټه بلل. او په دې يې هم بسنه ونكړه او كله چې يې مناسبه موقع ومونده، تبريې راواخست او د باطل پرستو يو يو بت يې مات او له منځه يوړ. هركله چې د بتانو عبادت كوونكي د ظالم باچا په ملتيا راوګرځيدل له داسې عجيبه كار سره مخامخ شول چې هيڅكله يې په ذهن كې هم نه ؤ انځور شوى. كله يې چې د دې كار له كوونكي ځخه پلټنه وكړه يوې ډلې وويل: ﴿سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهُ إِبْرَاهِيمُ﴾ [الانبياء :٦٠] يعنى له يوه ځوان ځخه چې ابراهيم نوميږي اوريدلي مو دي چې د دې بوتانو بدي يادوي نو دا لوى جرم او ګناه له ده ځخه پرته بل چا نه ده كړې. د ابرهيم خليل اود نمرود د اور بليدنه مشهوره ده.
موخه دا ده څو وپوهيږو چې پاك قرآن هغه د نمونه ځوان په توګه يادوي ځكه چې هغه د باطل په ماتولو او ځپولو كې د ځوانانو لاربنود او مقتدا دى.

**اسماعيل ذبيح ﵇**

دا د ابراهيم خليل زوى دى چې وروسته هغه هم پيغمبر شو، خو مخكې له پيغمبرۍ ځخه يې د تنكۍ ځوانۍ په منګ كې داسې لويه سربښندنه د الله حضورته وړاندې كړې ده چې د ذبيح

الله (د الله لپاره حلال شوي) لقب ورکړی شوی دی دا پيښبه داسې وه چې پلار يې په خوب کې وليدل  چې يوازنی ګران زوی د قربانولو ځای ته وړي اود الله لپاره يې حلالوي. ځرنګه چې د پيغمبر خوب حق دی، هغه بايد دا خوب عملي کړی وای، خو انديښنه دا وه چې آيا دا تنکی ځوان سرښندنې ته تيارېږي او يا د زور له مخې دې کار ته لاس واچوي، نو ځکه يې لومړی د ده سره د مشورې لپاره مسئله شريکه کړه. ابراهيم علیه السلام له داسې ځواب سره مخ شو چې د دې ځوان تر ټولو د لوړ ايماني قوت ښکارندوی ؤ. قرآنکريم له دې پيښې څخه داسې يادونه کوي  ﴿فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ يَا بُنَيَّ إِنِّي أَرَى فِي الْمَنَامِ أَنِّي أَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرَى قَالَ يَاأَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ مِنَ الصَّابِرِينَ﴾ [الصفات: ۱۰۲ ]. **ژباړه :** کله چې هغه(اسماعيل علیه السلام) د هلوځلو(مرستې کولو) مرحلې ته ورسيده نو ابراهيم علیه السلام ورته وويل:زوی جانه، زه په خوب کې ګورم چې تا حلالوم، ته ووايه چې ستا نظر څه دی؟ زوی يې وويل : پلار جانه، څه چې درته حکم کيږي هغه وکړه. ان شاء الله ما به صابر ومومې.

همغه وه چې دا پاک فطرته ځوان تر هغه شيبې پورې چې چاړه يې پرمرۍ راښکل کېده د غره په څير مستحکم ولاړ و او نوره کيسه يې مشهوره ده. دلته موخه دا ده ترڅو ووهيږو چې اسماعيل ذبيح الله د قرآني نمونه ځوانانو څخه هغه ځوان دی چې په صبر، زغم اود الله په عبادت او فرمان منلو کې د ټولو مقتدا او لارښود دی.

**يوسف عليه السلام**

يوسف عليه السلام د يعقوب عليه السلام زوی اود اسحق عليه السلام لمسی اود ابراهيم عليه السلام کړوسی دی چې د پيغمبرۍ نعمت په مسلسله توګه د دې کورنۍ په برخه شوی دی. د حضرت يوسف د ځوانۍ د وخت کيسه چې الله تعالی ورته بې اندازې حسن او ښايست ورکړی ؤ په هغه اندازه زړه راښکونکې او له عبرته ډکه ده چې په قرآنکريم کې په احسن القصص يعنې بهترينه کيسه ياده شويده . د دې کيسې د تفصيل ځای دغه لنډ لوست نه دی يوازې بايد دومره ووهيږو چې هغه د ځوانانو لپاره ډيره غوره بيلګه ده چې غوښتل يې خپل ځان د اخلاقي مفاسدو له لومو څخه وژغورې. هغه د خپلې ځوانۍ په ډيرو ښايسته ورځو کې ؤ او په ډير غوره ناز او نعمت کې يې ژوند کاوه او د هغه زمانې تر ټولو ښې او لوړې طبقې ښځې ورڅخه وغوښتل چې د زړه مرام يې پوره کړي، خو هغه د بند تنګه او تياره ګوښه په هغه ټولو نعمتونو او

خوندونو غوره کړه او ویې فرمایل: ﴿ مَعَاذَ اللَّهِ إِنَّهُ رَبِّي أَحْسَنَ مَثْوَايَ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ﴾ [یوسف: ۲۳] **ژباړه:** په الله له دې بدۍ نه پنا غواړم او بر سېره پر دې زما رب زه ډېر ښه ساتلی یم او ظالمان هېڅکله خلاصېدلی نشي.

که اوسني ځوانان په دې نیکه نمونه پسې اقتداء وکړي پرته له شکه الله تعالی به یې د دنیا او آخرت پایله داسې نیکه کړي او هغو ته به داسې عزت وریه برخه کړي لکه څرنګه چې یې یوسف علیه السلام ته وربښلی ؤ.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په دوه ډلو وویشل شي او په خپلو کې دې د هغو حکمتونو او عبرتونو په هکله بحث او څېړنه وکړي کوم چې د اصحاب کهف له کیسې څخه څرګندېږي.

## د لوست ګټې او لارښوونې

په پورتنیو آیتونو کې ځینې ګټې او لارښوونې شته چې عبارت دي له:

- ❖ د کهف د کیسې په نازلېدو سره د حضرت محمدﷺ د رسالت اثبات.
- ❖ د حق خبرې د څرګندولو غوره والی که څه هم په هغه کې د وژلو یا د وهلو او ټکولو او بندي کولو ویره وی.
- ❖ د توحید د عقیدې او د سپیڅلې کلمې(لااله الاالله) د بیانولو ارزښت، لکه څرنګه چې د اصحاب کهف ځوانانو وویله.
- ❖ له الله پرته د نورو مخلوقاتو د عبادت او لمانځنې بطلان او پر هغه د عقلي او نقلي دلیل نشتوالی.
- ❖ د دین او عقیدې د ساتنې په خاطر د الله په لار کې د هجرت د فرضیت او ارزښت ثبوت.
- ❖ د ځوانی اود هغه د منګ ارزښت، څکه انسان په دې دوران کې لوی لوی کارونه په آسانی سره تر سره کولای شي.

❖ د الله په غيبي مرستې سره د ربښتينو مؤمنانو د برلاسی ثبوت، لکه څرنګه چې يې د اصحاب کهف ځوانانو ته په هدايت کې زيادت وکړ او د دوی زړونه يې ټينګ او ثابت کړل.

## پوښتنې

۱- لاندې کلمې وژباړئ:

{نَبَأَهُم} ، {بِالْحَقِّ }،{ فِتْيَةٌ }، {وَرَبَطْنَا} ،{شَطَطًا}.

۱- د کهف په مبارك سورت کې څو کيسوته اشاره شوې ده؟

۲- د اصحاب کهف په کيسې پورې د اړوندو آيتونو د نازليدو سبب څه ؤ؟

۳- د ربط قلوب لفظی معنا او مراد په ذکر شوي آيت کې بيان کړئ؟

۴- د اصحاب کهف کيسه په لنډه توګه بيان کړئ؟

۵- د اصحاب کهف د ويده کيدو موده څو کاله وه؟

۶- د دې لوست د آيتونو له ګټو او لار ښوونو څخه څلور ګټې بيان کړئ؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په قرآن کريم کې د نمونه ځوانانو د سيرت نه په استفادې سره د (دځان، کورنۍ او ټولنې په اصلاح کې د ځوانانو ونډه)ترسرليك لاندې يوه مقاله وليکي، چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.